# ځرک

د نیکمرغه کوچني اختر په مناسبت د

عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله

دمبارکۍ پیغام!

دوولسم کال ځلورمه ګڼه پرلپسې ۸۸ ګڼه، چنګاښ، ۱۳۹۴ل، شعبان ۱۴۳۶هق، جون ۲۰۱۵م












## علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

دوولسم کال ځلورمه، پرلپسې ۸۸ يمه ګڼه، چنګاښ ۱۳۹٤ل
شعبان المعظم ۱٤۳٦هق جون ۲۰۱۵م

**امتياز :**

**دا متيازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

**مسؤل مدير :** عبيد تنوير

**ليکوال پلاوی :** ډاکټر صا بر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

افغانستان : ۱۸۰ افغا نی
پا کستان : ۲٤۰ کلداري
امريکا : ٦۰ ډالره
اروپا : ٦۰ يورو
يوه ګڼه : ۱۵ افغانی ۲۵ کلداري


**يادونه**

حتمي نه ده چې په ځرك كې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وكړي هره ليكنه دليكوال خپل نظر دی.


تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه



**پتې :**

کابل : د ځرک دفتر srak_111@yahoo.com


# لړليك

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله



# دغښتلي عزم، مثمرې پایلې !!

دعزم عملیاتوپه دې اړخ چې څومره کامیاب اولاسته راوړني يې درلودي، خبره نه کوو، ځکه دوست او دښمن ټول په دې پوه اومعترف دي چې داسلامي امارت سرسپارلو مجاهدینو او دالله ددین سپاهیانو چې دګوډاګی ادارې اودهغوئ دبادارانو په کومه حساسه سیمه او قوي ځاله برید کړي ،نه داچې هغه يې په ړومبيو شیبو اوکمو زیانونو تسخیر او له منځه وړي، بلکي متعال رب جل جلاله له اټکل اوتصور زیات دنورو فتوحات اوپرمختګونوانعام هم پرې کړی.

دمثال په توګه سږکال دمجاهدینوپوځي تصمیم اوستراتیژي داوه چې په جنوب کې به هغه سیمي ترکاملي اوبشپړې سلطي لاندې راولي چې دکابل رژیم شتون پکې حس کیږي او هم به دهیواد په شمال حوزه کې غلیم تر تهدید او ګواښ لاندې ساتي.

خو دمقتدر رب (جل جلاله) نصرت اومرسته له مجاهدینوسره دومره شامل حال وه چې هم په جنوب کې درژیم پراخي سیمي اومستحکم سنګرونه دمجاهدینوپه لاس تسخیر اوفتح وګرځیدل ، په شمال کې هم ګڼي ولسوالی او په درځنو سیمي او ددښمن قوي بیسونه له سترو زخایر او وسایلو سره لاسته ورغلل.

دهمدې تیرې یوې میاشتي په اوږدو کې دهلمند ، فراه ،په یوشمیر مهمو سیمو اوبیسونو سربیره ، په غزني کې دخوګیانو ولسوالی فتح شوه، دمیدان وردګو ولایت دجلریز ولسوالی تصفیه شوه، دلوګر په ازره ولسوالی کې ګڼي مورچي له دښمن څخه ونیول شوي ، دنورستان وانت ویګل ولسوالی ونیول شوه ، دننګرهار په ولایت کې د اختطافګرو جرړي وویستل شوي ، دغه راز په کابل ښارکې دخارجی قواوو په نښه ګرځولو سربیره ، داستخباراتومهم مرکز ترکارنده برید لاندې راغی داخلي اوخارجي یرغلګروته يې تاریخي درس ورکړ، په هغو سربیره په کندوز، بغلان، تخار اوبدخشان کې ګڼي نورې ولسوالی او حساس مراکز دمجاهدینو لاسته ورغلل.

پورته فتوحات تشي لافي اوتبلیغات ندي ، بلکې داسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسون سمعي اوبصري برخي دیادو مهمو سیمو دبریاوو مستندې صحني او فلمونه په خپل وخت کې ترتیب او نشرکړي.

داسلامي امارت پورته پوځي بریاوې دومره خوځنده اومثمري وي، چې دامریکایانو او اجیرانو زړونه يې نورله جنګي میدانه ساړه او تور کړل، مخ يې سیاسي ډګر اونوودسیسوته واړاوه، له ګاونډیو هیوادونو نیولي بیا ترنړیوالو موسسو پورې ، هریوه ته ځولی وغورځولي، چې که دوی خپل اثر او رسوخ وکاروي ترڅو اسلامي امارت دخبرومیز ته ورسره کیني.

خواستعمار اوګوډاګیان يې باید پوه شي ، چې اسلامي امارت ستاسي په هرې حربي اوچلوټې پوهیږي ، څرنګه چې الله تعالی ستاسي (مغرور ځواک، مجهز پوځ اوعصري تکنالوژۍ ) دمجاهدینوپه لاس دړې وړې اوشاګرځ کړه، همدغه ډول به په سیاسي میدان کې هم ستاسي هره دسیسه او نیرنګ له شکست اورسوایی سره مخ کیږي او په سیاسي میدان کې به هم برى اووورستی فتح ددوئ وي، ان شاالله تعالی



## دنیکمرغه کوچني اختر په مناسبت

# عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله)

## دمبارکۍ پیغام!

الحمد لله رب العلمین و الصلوة والسلام على سيدالأنبياء والمرسلين محمد وعلى آله وأصحابه أجمعين وبعد قال الله تعالى :

﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ﴾ [الحج:۳۹].

ټول اسلامي امت او په خاص ډول د افغانستان مسلمان اومجاهد ولس ته !

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته !

له نیکو هیلو سره یوځای د نیکمرغه کوچني اختر او دجهاد په ډګر کې دسترو فتوحاتو مبارکي درته وایم الله تعالی مو رمضان المبارک اوپورې ترړلي ټول عبادات، صدقات اوحسنه اعمال قبول کړه. آمین یارب العملین.

دغه فتوحات لومړی دالله جل جلاله نصرت، او بیا دافغان مجاهد ولس د بېدریغه قربانیو، هلو ځلو او همکاریو نتیجه ده. د الله تعالی څخه ټولو ته اجر غواړم.

ډېر د شکر او ویاړ ځای دی، چې نن د اسلام د مبارک دین د سپېځلو او بختورو ورځو په مناسبت له تاسو سره د زړه خواله کوم، دا داسې ورځې دي چې مسلمانان یو بل ته مبارکي ورکوي، یو بل ته د عافیت دعاګانې کوي، او دیو بل په وړاندې ددیني اخوت په فضاء کې داخلاص،ورور ولۍ، او خواخوږۍ د اظهار لورېینه کوي.

له فرصت نه په استفادې غواړم د افغانستان اسلامي امارت د روان جهاد او مبارزې د پرون او نن په اړه ځینې وضاحتونه درسره شریک کړم:

۱ ــ دامریکا په مشرۍ داشغالګر ایتلاف لخوا په افغانستان یرغل د اسلامي امت په یوه برخه د ټولو انساني ارزښتو پر خلاف یو صریح او ظالمانه تجاوز و، چې په وړاندې یې شرعا په موږ مقدس جهاد فرض عین وګرځید، الله تعالی فرمایي: ﴿وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ...﴾ [البقرة:۱۹۰].

ژباړه: او دالله په لاره کې له هغو سره وجنګیږئ چې له تاسو سره جنګ کوي.

همدې دیني لارښوونې ته په پام سره د امریکایي یرغل په اړه دهیواد تر یونیم زر زیاتو دیني علماء کرامو

اسلامي امارت ته دجهاد فتوی ورکړه اودټولي نړۍ حقه علماء کرامو تایید کړه چې د همغې فتوی په اساس لکه څنګه چې د یرغل په ابتداء کې موږ جهادي فریضه په ځای کوله نن هم په همغه ډول جهاد فرض عین دی ځکه زموږ اسلامي هیواد افغنستان اشغال دی او یرغلګر یې په مځکه او هوا مسلط دي د تیر په پرتله یوازې دومره فرق راغلی چې بهرنیو اشغالګرو له درنو ځاني او مالي تلفاتو لیدو وروسته خپل تعداد لږ کړی او ځانونه یې خوندي او لویو مرکزونو ته ټول کړي او په عوض کې یې زموږ دټولني یو شمیر بې بندوباره، دبهرنیو استخباراتو روزل شوي اجرتي قاتلان، اوناپوهه ځوانان د افغان امنیتي ځواکونو په نوم دجنګ ډګر ته رامخ ته کړي چې تمویل، تجهیز اود فشار په وخت کې مستقیما ملاتړ یې بیا هم اشغالګر کوي، لهذا موږ اوس هم دپخوا په شان دهیواد دآزادۍ او داسلامي نظام دحاکمیت لپاره په مقدس جهاد مکلف یو.

داسمه ده چې اوس دهیواد ډیري پراخې سیمي مجاهدینو فتحه کړې دي خوزموږ دغه جهادي مبارزه به تر هغه وخته روانه وي تر څو مو هیواد د کفري اشغال له خبث څخه په بشپړ ډول پاک او اسلامي نظام پکي حاکم شي .

۲ ـ د مسلح جهاد تر څنګ سیاسي فعالیت او له سوله ایزو لارو خپل مقدس هدف ته رسېدل یو مشروع امر او د نبوي سیاست اهمه برخه ده، زموږ مبارک پیشوا حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم لکه څنګه چې دبدر او خیبر په میدانونو کې له کفارو سره په جګړه بوخت و، ورسره په څنګ کې یې د مسلمانانو په نفعه د عهد تړلو، د کفارو له استازو سره د جرګو، دپیغامونواو سفیرانواستولو او حتی په بیلابیلو مواقعو کې له محاربو کفارو سره د مخامخ خبرواترو سیاست هم عملي کاوه،که موږ شرعي لارښوونې په دقت وګورو نو وینو چې له دښمن سره لیدنې کتنې او یا په ځینو مواقعوکې سوله ایز تعامل منع نه دی، بلکې منع دادی چې د اسلام له عالي موقف څخه تنزل وشي او شرعي اوامر تر پښو لاندې کړای شي، نو بناء موږ سیاسي فعالیتونه او دنړۍ له بېلا بېلو هیوادونو او خپلو افغانانو سره تماسونه اولیده کاته ددې لپاره کوو چې د هېواد اشغال پای ته ورسي، او یو خپلواک او اسلامي نظام مو په هېواد کې حاکم شي. او دا زموږ شرعي حق دی، چې له ټولو مشروعو لارو استفاده وکړو، ځکه موږ د یوې مسؤلې او منظمې ادارې په حیث تر شا لوی ولس لرو، په بشري ټولنه کې ژوند کوو، یو بل ته احتیاجات لرو، باید ټول مجاهدین او ولس مطمئن وي چې په دې سلسله کې به له خپل شرعي موقف نه په هر میدان کې کلکه دفاع کوم اودسیاسي فعالیتونو لپاره موسیاسي دفتر جوړ کړی، چې د هر ډول سیاسي چارو پر مخ بیولو مسئولیت ور په غاړه دی.

۳ ـ دا چې موږ په افغانستان کې د جهادي صف په یووالي ټینګار کوو له دې امله چې یو خوالهي امر دی بل دا چې د ډلو د تعدد له امله مو دشوروي د تجاوز په وړاندې د تېر ګټلي جهاد نتیجه له لاسه ووتله.

الله تعالی دجهادي صف د یووالي په اړه داسې فرمایي:

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفّاً كَأَنَّهُم بُنيَانٌ مَّرْصُوصٌ [٤/ الصف].

ژباړه: بېشکه الله هغه خلک خوښوي چې دده په لار کې د يو محکم او سيده ديوال په څېر منظم او متحد جنګيږي.

اوبل ځای په صريح نص سره قرآن کريم مسلمانان له تنازع ، تفرق او خپل منځي اختلاف څخه منع کوي او هغوی ته داسې وايي: (وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ۖ وَاصْبِرُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ [٤٦/ الانفال].

ژباړه: او د الله جل جلاله او دهغه د رسول صلی الله عليه وسلم امر ومنئ، او په خپلو منځو کې شخړه مه کوئ، که نه نو په تاسو کې به کمزوري پيدا شي، توان او قوت به مو ختم شي، له زغم څخه کار واخلئ، بيشکه چې الله له صابرانو سره دی.

او د رسول الله صلی الله عليه وسلم مبارك ارشاد دی چې فرمايي {لاَ يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ} [رواه البخاري.

ژباړه: مؤمن له يوه غار څخه دوه ځله نه چيچل کيږي.

لهذا زموږ په هيواد کې دجهادي صف متحد ساتل يوه شرعي فريضه ده، نوځکه مو خپلو ټولو مجاهدينو ته امرکړی چې خپل وحدت ټينګ وساتي او څوک چې اختلاف پيداکوي، دا جهادي صف تخريبوي، او د مجاهدينو د شيندلو هڅه کوي، دهغو مخه په کلکه ونيسي .

۴ ـــ رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : (الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يَخْذُلُهُ وَلَا يَحْقِرُهُ التَّقْوَى هَاهُنَا "وَيُشِيرُ إِلَى صَدْرِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، "بِحَسْبِ امْرِئٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ دَمُهُ وَمَالُهُ وَعِرْضُهُ) [رواه مسلم واحمد].

ژباړه: مسلمان دمسلمان ورور دی نه به ظلم ورباندي کوي نه به يې له مرستې ځان شاته کوي اونه به هغه ته په سپکه ګوري. تقوی دلته ده- او نبي عليه السلام درې ځلې خپلې مبارکې سينې ته ګوته ونېوله - دمسلمان لپاره همدا ګناه بس ده چې خپل مسلمان ورور ته په سپکه وګوري د هرمسلمان وينه ، شتمني او عزت په بل مسلمان حرام دي.

لوړ نبوي ارشاد ته په پام سره موږ د اسلامي ټولنې د غړو په حيث هر مسلمان ته د خپل ورور په سترګه ګورو او د اقليتونو په شمول دټولو افغانانو مشروع حقوق د يوه ديني مسؤليت په توګه په رسميت پيژنو.اسلامي امارت چې دهيواد دټولوسيمواوټولو قومونو له مينځه په خپلو تشکيلاتو کې صالح او پوه شخصيتونه لري ، دتيرو ٣٦ کالو له تجربو او بيا دوروستيو شلو کلونو له مسئوليتونو نه يې ډير څه حاصل کړي لهذا؛ داتشويش دي څوک نه کوي چې که اسلامي امارت واکمن شي نوڅه به کيږي زه تاسو ټولو ته اطمنان درکوم چې راروان تحول به داسې نه وي لکه دکمونستي رژيم له ړنګيدو سره چې هر څه په بل مخ واوښتل. اوس دهغه وخت په شان دجهادي صف په

منځ کې اختلافات نشته داخل به دهیواد په هره برخه کې شوی مشروع پر مختګ ساتل کیږي ملي شتمنۍ اود خصو صي سکتور پرمختګ او لاس ته را وړنې به ساتل کیږي دهیواد د اقوامو او شخصیتونو حیثیت ته به درناوی کیږي دافغانانو دیني او دنیوي اړتیاوو ته به یوه جواب ګویه، شفافه، او مسلکي افغان شموله اداره را منځ ته کیږي، مونږ هڅې کوو چې له ټولو ګاونډیو، دسیمې او نړۍ له هیوادونو سره داسلامي اصولو او ملي ګټو په رڼا کې متقابلې اړیکې ولرو او افغانستان دپردیو له شر او داخلي اختلافاتو څخه وساتو.

۵ ــ ځیني کړۍ په مجاهدینو تور لګوي چې تاسو دپاکستان اوایران خلک یاست، دا کسان ډیر ظالمانه قضاوت کوي،ځکه زموږ تیر تاریخ اوروان جریان ددوی د ادعا تصدیق نه کوي، اوراتلونکی تاریخ به هم ددوی دتهمت خلاف شاهدي ورکړي. ان شاءالله.

هو دا یو حقیقت دی چې موږ له پاکستان، ایران بلکې ټولو ګاونډیو سره ښې اړیکې غوښتي دي، دپاکستاني اوایراني ولس په خیر مو د نورو ګاونډیو، سیمې او نړۍ دولسونو خیر غوښتی دی اوغواړو یې، او دا د ټولو په خیر زموږ فیصله شوې پالیسي ده.

په دې برخه کې مي دعقل له خاوندانو غوښتنه داده چي ددښمن داستخباراتو په دي نا معقوله پروپاګنده دي ځانونه نه غولوي، خپل لوی لوی افتخارات دي نورو ته نه منسوبوي، که د پردیو په مرسته د ا دومره لویه مقابله ترسره شوې وای، چي له بدخشانه تر کندهاره، له فاریابه تر پکتیا او له هراته تر ننګرهاره یې ټول هیواد په بر کې نیولی، اوکه خارجي مرسته موثره وای نو دکابل داداريې درد به یې دوا کړی وو چې تر شاوخوا یې پنځوس هیوادونه ولاړ دي، له وسلو نیولي تر سرو پورې هر څه له خارجه ورته را ځي او حتی مشران یې لا هغوی ورته را لوی کړي او روزلي دي، خو دې هر څه یې پښې ټینګې نکړې او ورځ په ورځ سیمي له لاسه ور کوي، نو له موږ سره که دالله تعالی نصرت،د مؤمن ولس ملاتړاوجهادي معنویات نه وای، ایا داممکنه وه چي داخوارلس کاله نامتوازنه جګړه به مو دنړۍ له سترو نظامي قوتونو سره دیوه یا دوو هیوادونو په جزئي او پټه مرسته پرمخ بیو لي وای؟ باور وکړئ چي دا خبره سالم عقل نه مني .

بناء مسلمانان وروڼه هغه که له موږ لیري دي یا نږدې باید ددښمن د تبلیغاتو ښکار نشي، دښمن ډیر مکار او چالاک دی چې د مسلمانانو او اسلامي حرکتونو په خلاف خپل تبلیغات په ډیر مهارت سره عامو خلکو ته رسوي، خو مسلمانان باید ځیرک او په ایماني فراست سمبال واوسي .

٦ ــ ځینې خلک په ناسم ډول او بې له کوم موجه دلیل څخه اسلامي امارت د نویو پرمختګونو، عصري علومو او وسائلو، مخالف بولي، په داسې حال کي چي

د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال دعصري ښونځیو اودلوړو زده کړو دمؤسسو تعداد او مصارف له دیني مدارسو نه زیات وو، دهیواد تقریبا شل فیصده بودیجه په تعلیم اوتربیه لګیده اوزموږ دیني علماء ځکه دعصري تعلیم سپارښتنه اوملاتړ کوي چي اسلام ضروري بللي دي، الله تعالی فرمایي :

(وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ...) [الانفال: ٦٠].

ژباړه: او تر خپلې وسې دځواکمنېدو، نښې ويشتو، او آسونو روزلو تياری ورته ونيسئ، تر څو په دې سره دالله پر دښمنانو او پرخپلو دښمنانوهيبت راولئ.

دپورته مبارک ارشاد له مخې چې الله تعالی فرمايي ددښمن په مقابل کې تياری ونيسئ نو په اوس وخت کې چې جهاد يوه مهمه فريضه ده هغه اسباب چې دښمن ښه پرې ځپل کيږي هغه له عصري تعليم او نويو تجاربو پرته نه حاصليدای شي اونه هم استعماليدای شي همدارنګه دمجاهدو زخميانو او نورو مسلمانانو تداوي اود عام ژوند په مختلفو فني،تخنيکي،صنعتي،زراعتي او نورو بخشونو کې ددښمن له احتياجه خلاصون، په معاصر دور کې دمسلمانانو لپاره سم خدمت او د اسلامي ټولنې خودکفايي له عصري علومو پرته نشي کيدای اوزموږ دفقهې منل شوي قاعده ده چې : (ما لا يتم الواجب إلا به فهو واجب ــ هغه چې له هغه پرته واجب نه پوره کيږي، هغه هم واجب دي ) لهذا اسلامي امارت دمقدس شريعت په رڼا کې دعصري علومو او وسايلو په اهميت قائل دی او ټينګار پرې کوي، له همدې کبله دې مجاهدين د ګران هېواد د نوي نسل دديني او عصري زده کړو لپاره په خپلو سيمو کې ور شرايط برابر کړي.

۷ ــ مجاهدينو ته يوار بيا ور په زړه کوم چې که دوې خبرې عملي کړئ، نو آخري فتح به ستاسو وي ، يو دا چې په خپلو ټولو کړو وړو کې دالله تعالی رضا په نظر کې ولرئ، له دين، وطن ، امارت او خپلو مشرانو سره اخلاص او وفا ته دوام ور کړئ، همدا ددين لار ښو وني دي الله تعالی فرمايي: ( يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ.) محمد ٧

ژباړه: اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی، که د الله (له دين) سره مرسته وکړئ، نو (الله) به ستاسو سره مرسته وکړي او قدمونه به مو ټينګ کړي.

بل داچې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي (لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيرَنَا وَلم يُوَقِّرْ كَبِيرَنَا )... ترمذي.

ژباړه: هغه څوک له موږ څخه نه دي چې په کشرانو مو رحم نه کوي، او د مشرانو مو عزت نه کوي،( يعنی هغوی له امت محمدي صلی الله عليه وسلم څخه نه دي او نبي کريم صلی الله عليه وسلم برأت ترې اعلانوي.)

نو له خپل ولس سره نرمي، مينه او ښه اخلاق وکړئ، مشرانو ته يې دمور او پلار او کشرانو ته يې دورونو او اولادونو په نظر وګورئ، د عامو خلکو د سر او مال ساتنه او ژغورنه ستاسو اسلامي او انساني وظيفه ده، په ځانګړي ډول په خپلو نظامي پلانونو کې د ملکي تلفاتو مخنيوي ته ځانګړې پاملرنه وکړئ، که تاسو تاريخ مطالعه کړئ، نودر ته جوته به شي چې ټول عمر په دې خاوره کې هغه چا ښه ورځ نده ليدلې، چا چې دالله له دين سره خيانت کړی او دې مجاهد او مؤمن اولس ته يې په سپک نظر کتلي اواسلامي اخلاق يې تر پښو لاندې کړي، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: (أكمل المؤمنين إيماناً أحسنهم خلقاً) [رواه ابوداود].

ژباړه: په مسلمانانو کې دکامل ایمان خاوند هغه شخص دی چې اخلاق یې له ټولو څخه ښه وي.

نودملت زړونه په حسنه اخلاقو خپل کړئ .

۸ ــ مجاهدینو وروڼو! اوس چې الله تعالی دفتوحاتو دروازه در باندې را خلاصه کړې نو کوښښ وکړئ چې دمخالف صف کسان له با طلي لارې څخه را دعوت کړئ او دخوندي او با عزته ژوند شرایط ورته برابر کړئ، تر وژلو یې په اصلاح کولو خوشحاله شئ، ځکه چې کورنۍ او یتیمان یې زمونږ ټولنه ځوروي، اوبیاهم ستاسوله غاړې کیږي، الله تعالی هغه کسان ستایلي دي څوک چې قهراوغوسه زغمي اوعفوه کوي : (وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ) آل عمران (۱۳٤)

ژباړه: او (له الله څخه ویریدونکي خلک) دغوسې زغمونکي او خلکو ته عفوه کونکي دي، الله جل جلاله داسې نیکان خلک ډیر خوښوي.

۹ ــ دټولي نړۍ اوپه خاص ډول د افغانستان له مسلمانو خلکو غوښتنه کوم چې دفتوحاتو په دې پیل شوي بهیرکې مو لکه تیر۱۴ کلونه چې په سراومال دخپلو مجاهدینو وروڼو مرسته وکړه، اوس یې ترپخوا لا زیات ملاتړاو مرسته وکړئ، دې ته مو باید پام وي چې جهاد زمونږ او ستاسو په هر یوه تن فرض عین دی،که کوم څوک په خپله جهادي سنګر ته نه شي تللی دا خو کولای شي چې د یوه مجاهد په تجهیز او دجهادي صف سره په مالي، سیاسي او فرهنګي مرستو خپله جهادي وجیبه اداء کړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

( مَنْ جَهَّزَ غَازِياً فِي سَبِيلِ الله فَقَدْ غَزَا، وَمَنْ خَلَفَ غَازِياً فِي سَبِيلِ الله بِخَيْرٍ فَقَدْ غَزَا ) متفق علیه

ژباړه: چا چې دالله تعالی دلارې مجاهد ته وسائل تیار کړل نو ده غزا وکړه او چا چې د الله تعالی د لارې دمجاهد د کور ښه پالنه وکړه نو بې شکه ده جهاد وکړ.

۱۰ ــ په پای کې دنړۍ له ټولو مشرانو او عامو مسلمانانو نه هیله کوم چې په خپلو کې دي د وروروئ اواتفاق ژوند سره وکړي په داخلي اختلافاتو دي خپل صفوف نه کمزوري کوي دزغم ،حوصلې،تدبر او اسلامي شریعت ته دپابندئ سیاست دي خپل کړي اوله ټولو شتمنو اهل خیرو وروڼو نه هیله کوم چې د اختر په خوښیوکې دشهیدانو،اسیرانو،معیوبینو، مسکینانو اودسنګر دغازیانوله یتیمانواوکورنیو سره هراړخیزې مرستې وکړئ،داختر په خوښیوکې یې درسره شریک کړئ، حوصله افزایي یې وکړئ، په دې سره د دنیا اواخرت کامیابي او خوشحالي حاصله کړئ همیشه دځان غوندې د نورو هم خیر غوښتونکي اوسئ ځکه همدا خیراندیشي-دفلاح او کامیابۍ لاره ده: (وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ) [الحج- ۷۷] ژباړه: او نیك کارونه (لکه صله رحمي او ښه اخلاق) کوئ، تر څو برى درپه برخه شي.

اخترمو یوځل بیا مبارک شه او عبادتونه مو الله تعالی قبول کړه.

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

**ملامحمد عمر مجاهد**

همایون تېري

# عیسی خان څوک چپه کړي دي؟

تیره اونی د ولسي جرګې تالار په داسې حال کې د څو تنو سرتېرو بریدګرو تر برید لاندې راغی چې د کابل ولسمشر دوهم مرستیال او د دفاع نوماند وزیر د پارلمان تالار ته د ننوتلو په حال کې وو.

د برید په اړه د دروغو لړۍ له هغه وخت پیل شوه چې د ولسي جرګې رییس وویل: شارتي برق است! دا لړۍ پسې وغځېده او د عیسی خان په نامه یوه کس اعلان وکړ چې شپږ بریدګر یې په پنځو دقیقو کې وژلي. اوس تازه راپورونه وایي چې دوه نورو عسکرو دعوه کړې چې یوازې عیسی خان بریدګرو نه دي وژلي بلکې دوی هم چپه کړي.

دا چې عیسی خان له اول څخه همدا پلان درلود چې خلکو ته په دومره لوړه سویه فریب ورکړي او که تصادف او خپلو باتو په داسې جال کې راګیر کړ چې اوس ترې نه ځان خلاصولای شي او نه ثبوت وړاندې کولای شي، د نوموړي د فزیکي او رواني وضعیت تر مطالعې وروسته دوهم احتمال حقیقت ته ډېر نږدې ښکاري.

عیسی خان په پیل کې د یو خبریال د غولوني لپاره لافې وویشتې چې شپږ کسان یې په پنځو دقیقو کې وژلي، هغه فکر نه کاوو چې دده لافې به دومره ژر رسنیزې شي اوخلک به یې ومني. ما چې له پېښې څو ساعته وروسته نوموړی د طلوع تلویزون په ستوډیو کې ولید په خبره کې یې اوچته محسوسیده چې له دغسې یو غیر مترقبه حالت سره مخامخ دی او ډارېږي که ژورې پوښتنې ترې وشي په خپلو دروغو کې به بند راشي.

ما د یک تلویزون هغه ویډیو ولیدله چې عیسی خان په کې څو تنو وژلو شوو کسانو سر ته ناست دی چې ساده جامې یې په تن او څپلکې یې په پښو دي او دعوه کوي چې ده پخپل لاس وژلي دي. ما ته پوښتنه پیدا شوه، غوښتل مې دا پوښتنه د فیسبوک له احساساتي ځوانانو وکړم، خو چون په فیسبوک کې داسې رواج دی چې کله څوک په خبره کې رابند او بې ځوابه کړې بیا پنجاب او آی ایس آی ته کنځل کوي او په دې ډول ځان خلاص کړي.

پوښتنه دا ده چې تر اوسه کوم ډله ییز سرتیري بریدونه شوي، کله هم داسې نه دي پیښ شوي چې سرتیرو په عادي جامو کې په داسې حساسو سیمو بریدونه تر سره کړي وي، بلکې د چارواکو په خپل اعتراف سره بریدګرو د افغان ځواکونو یونیفوروم په تن کړي وي او له همدغه یونیفوروم څخه په استفادې له امنیتي کمربندونو تیر شوي وي.

ما چې د عیسی خان مخې ته پراته مړي ولیدل سوال راته پیدا شو چې دا وژل شوي کسان څوک دي؟ ایا داسې خو به نه وي عیسی خان هغه ملکي وګړي چپه کړي وي چې امنیتي مسئولینو یې په پروني برید کې د وژل کیدا خبر ورکړ؟

د برید پر مهال به خبریالانو د چاودنو حساب نېوه او رسنیو به راپور ورکاؤ چې لسمه چاودنه وشوه، یوولسمه چاودنه وشوه، دولسمه... که شپږ واړه بریدګر لغماني عیسی خان چپه کړې وي نو دا چاودنې چا کولې؟

عیسی خان ادعا کوي چې په پنځو دقیقو کې یې برید ته د پای نقطه کېښوده، ایا له دې څخه نه معلومیږي چې پاتې ۵۵ دقیقې ډزې په عامو خلکو کېدلې او ملکي وګړي د حکومت په ډزو وژل شوي او د عیسی خان په اصطلاح چپه شوي دي؟

امنیتي چارواکي خو وایي چې بریدګر د پارلمان ترڅنګ یوې نیمه ابادې ودانۍ ته ننوتلي وو، که داسې وي نو عیسی خان په کوم وخت کې چپه کړل؟ ایا له ودانۍ بیرته راکوز شول تر څو پرې عیسی خان ټق وکړي او که ودانۍ ته له ختلو مخکې عیسی خان چپه کړل او بیا ودانۍ ته وختل؟

دا هغه پوښتنې دي چې پنجاب او آی ایس ای ته په کنځلو کې نه ځوابیږي، بلکې تر لږ سوچ او فکر وروسته سړی دې نتیجې ته رسیږي چې عیسی خان ته د چرسو په نشه کې هر انسان فدایي بریدګر برېښېد او د بې ګناه ولسي وګړو کورنۍ یې د ویر په ټغر کېښینولي دي.

په هر حال، د فدایانو هیله او ارزو خو همدا وه او شهادت یې ارمان ؤ، څه مخکې شهیدان شوي او څه وروسته، خو ارمان مې د نیلوفر ابراهیمي هغه تنخوا ده چې اعلان یې کړی چې راتلونکې میاشت به یې عیسی خان ته ورکوي.

# کله چې مجاهدین جهاد ته درومي!!!

## إسلام پال

عن مجاهدقال : خرجت الى الغزو فشيعنا عبدالله بن عمررضي الله عنهما، فلما ارادفرا قناقال : انه ليس معي ما اعطيكماه ،ولكني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول : ان الله اذا استودع شيئا حفظه وانا استودع الله دينكما وامانتكما وخواتيم اعمالكما.) السنن الكبرى للبيهقي :۱۷۳\۹

ژباړه: امام مجاهد رح روایت کوي چې زه جهادته تلم نوحضرت عبدالله بن عمر(رض) له موږ سره درخصتیدو لپاره ووت ، کله چې هغه له مونږ څخه جداکیدونوویې فرمایل : له ماسره څه نشته چې تاسوته یې درکړم؛ خوله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه مې اوریدلي دي چې فرمایل یې : کوم شی چې الله تعالی ته وسپارل شي الله تعالی دهغه حفاظت کوي نوزه ستاسې دین ،ستاسې دحفاظت وړڅیزونه اوستاسې داعمالو خاتمه الله تعالی ته سپارم.

تشریح : له مجاهدینو سره تریوځایه تلل سنت طریقه ده،کله چې به له مدیني منوري څخه دمجاهدینو تشکیل (سریه) روانیدو نورسول الله صلی الله علیه وسلم اوبیا خلفاء به هم دمجاهدینو سره تریوځایه تلو ،اولکه څرنګه چې دجهاد سپېڅلی سفر له خورا زیاتو اجرونو اوثوابونو څخه ډک دی همداراز مجاهددسختو ازموږینښتونو اوننګونو سره هم مخ کېږي نوځکه باید مجاهدته دغه له میني اوخلوص نه ډکه دعا وشي څویې لوی څښتن دسراومال ،ځان اوټولو لاس ته راوړو اعمالو اوثوابونو حفاظت وکړي.



# محترم ابوبکر البغدادي ته

## داسلامي امارت د رهبري شورى ليك 

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله معز التوحيد وأهله، ومذل الشرك و حزبه، وأشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريك له في ربوبيته و ألوهيته و أسمائه وصفاته، و أشهد أن نبينا محمدا عبده و رسوله، اللهم صل و سلم و بارك عليه و على آله و أصحابه وبعد:

ډيرمحترم ابوبکرالبغدادي او ستاسو تر مشرۍ لاندې دامريکايي اشغال پر خلاف ټولو جنګيدونکو مجاهدينو!

السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته!

له الله تعالى څخه غواړو چې د هغه جل جلاله د کلمې د لوړ والي او د اسلامي سپيڅلي نظام د تنفيذ په لاره کې د حق د لارې ټولو مجاهدينو ته کاميابي اوپه الهي سپيڅليو احکامو د تمسك او اعتصام توفيق ورنصيب کړي.

محترمو! افغانستان د اسلام د مقدس دين د ظهور له لومړۍ پيړۍ څخه تراوسه پوري د اسلام مستحکمه قلعه او له جزيرة العرب وروسته يي د آسيا په لويه وچه کې د اسلام په اشاعت او خپراوي کې مهم رول لرلای.

د معاصر جهادي دور نړيوال اتلان امام المجاهدين شيخ عبدالله عزام ، قائد المجاهدين شيخ اسامه بن لادن ، قاهر الصليبيين ابو مصعب الزرقاوي او قاهر الملحدين خطاب رحمهم الله جميعا ټولو د افغانستان د جهادي مدرسي د شاګردي وياړ درلود.

په کوم عزم چې له پيله مجاهدينو د انګريزانو، روسانو او ننيو امريکايانو پرخلاف جهاد پيل کړی او د اسلام لپاره چې يي قرباني ورکړې ، اسلامي امارت او افغان مسلمان ولس په دې لاره کې نه هيريدونکي قربانۍ ورکړې او لايي هم ورکوي چي دا دی يوځل بيا داشغال ګرو صليبيانو په ضد مقدس جهاد دکاميابۍ پړاوته نږدي شوی امريکايان او دهغوی کافر ملګري اکثريت تښتيدلي مجاهدين ورځ تر بلې پراخې سيمي تر خپل کنټرول لاندي را ولي او روان ۱۴۳۶ هـق کال کې دلاډيرو بر ياو اميد لروترڅوددښمن دپاته شونو ټغرهم ورټول کړو.انشاءالله تعالى، وماذالك على الله بعزيز.

ښاغلو! په افغانستان باندې د امريکا په مشرۍ د يرغل داساسي لاملونو څخه يو هم دلته د هغه اسلامي حاکميت له منځه وړل وو چې د قران او حديث د احکامو مطابق داهل سنت والجماعت په روښانه تګ لاره جوړ ، او د هيواد حکومتي ارګانونو له لوري د حکومتي سيستم په ټولو مجالاتو کې واجب الاجراء و،دشرك اوکمونستي فساد فکرجرړي يې ايستلي وي ،دټولوبدعتونو او خرافاتو مخه يې نيولي وه.

دغه ډول اسلامي نظام د امریکاپه مشرۍ نړیوال کفرته د زغملو وړنه و او هماغه وه چې دمختلفو پلمو په ارائه کولو سره یې ورباندې وحشیانه برید وکړ.

افغان مسلمان ولس د اسلامي امارت تر قیادت لاندې چې په رأس کې یې امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد(ادام الله حیاته ) قرار لري په ډیره میړانه سره د متجاوزینو پرخلاف جهادي صفونه برابر او پوره ۱۳ کاله یې د یرغلگرو له تیري څخه د افغانستان د آزادي او اسلامي حاکمیت د پلي کولو لپاره بیساري قرباني ورکړي.

هغه څه چې د صلیبي اشغالگرو په مقابل کې د اسلامي امارت د جهادي پالیسي د امتیازي خصوصیت په توگه تاسوته یادول غواړو هغه دا دي، چې اسلامی امارت د نړیوال کفر پرخلاف د جهادي صف پر یووالي او مر صوص ساتلو ډیر ترکیز لرلی او اوس یې هم لري.

ځکه مونږ د شوروي اشغال پرمهال د جهادي صف د تفرق او تعدد ناوړه اغیزې په سترگولیدلي چې په نتیجه کې یې د افغانستان د ۱۴ کلن جهاد د یونیم ملیون شهیدانو د وینو ثمره ضائع ، او د اسلامي امت ټولې هغه هیلې یې له خاوره سره خاورې کړې چې په دغه اسلامي جهاد پوري یې تړلې وې.

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د هغه مبارك ارشاد له مخې چې فرمایي {لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ} رواه البخاري برقم ۸۳، ومسلم برقم ۷۶۹۰.

اسلامي امارت په افغانستان کې د جهادي صف پر یووالي ځکه ډیر تینگار لري چې د جهادي صف مرصوص ساتل مأمور به عمل او الله تعالی په دې اړه فرمایي:

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ (٤) الصف.

اوبل ځای په صریح نص سره قرآن کریم مسلمانان له تنازع ، تفرق او خپل منځي اختلاف څخه منع کوي او هغوی ته داسې وایي: وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ۖ وَاصْبِرُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ (٤٦) الانفال

اسلامي امارت د پورتنیو قراني نصوصو د تعمیل ، د پخواني جهاد له تجربو او د خپلې ټولنې او محیط څخه په کافي معرفت سره په افغانستان کې د جهادي صف تعدد دلته نه د جهاد او نه هم د مسلمانانو په گټه بولي ، ځکه د افغاني محیط خصوصیت دادی چې تل د داخلي اختلافاتو او شخړو بشکیل وي ، اوکه چیري قیادت یو او صف واحد وی بیا د داخلي اختلافاتو احتمالات له منځه ځي.

اسلامي امارت تر اوسه پوري د اختلاف او تفرق ټولې فتنې په وحدت الصف سره شنډې کړې وي اوس که د لته د امارت ترڅنگ د بل جهادي صف او یاهم بل قیادت رامنځته کیدلو کوښښ کیږي نو په لوی لاس به د اختلاف او تفرق فتنو ته زمینه سازي کیږي ؛ ځکه خو اسلامي امارت په افغانستان کې جهادي فعالیت یواځې د امارت تر قیادت لاندې مشروط او پر لاندې نقاطو اصرارکوي:

۱ـ دا چې د اسلامي صف یووالی مأمور به عمل او په تیره بیا له کافرانو سره د قتال او مقابلې په حالت کې یوضروري امر دی نو په افغانستان کې د متجاوزو امریکایانو او د هغوی د گوډاگیانو پر خلاف جهاد باید تریوه بیرغ ، یوه قیادت او یوه امر لاندې وي.

دا چې د افغانستان د اسلامي امارت قیادت د هیواد ۱۵۰۰ علماوو (د اهل حل وعقد شورا) د شرعي انتخاب او مبایعت په اساس تعین شوی او د الشیخ حمود بن عقلاء الشعیبي رحمه الله په څیر د اسلامي نړې مشهورو فقهي علماوو او د شیخ اسامه رحمه الله په څیر مشهورو جهادي قائدینو دغه شرعي امارت تائید او له هغه سره بیعت کړی ، او همداراز اسلامي امارت تر

اوسه پوري پر خپل هماغه اسلامي موقف ثابت ولاړ دی،اوپه ټوله نړۍ کې داهل سنت والجماعت دټولو پیروانو خواخوږي ورسره ده او هیڅا داعتراض وړ څه نه دي ور باندي پیدا کړي، دې ته په پام سره په افغانستان کې د نوي موازي صف پرانیستلو ته نه شرعا او نه هم عقلا کوم اړتیا لیدل کیږي.

۲ـ د شرع او سالم عقل په اساس مسلمانان مکلف دي چې د خپلې اسلامي ټولنې د عُلیاشرعي او دُنیوي مصالحو لپاره هغه لارې چارې غوره کړې چې د دوي د تحفظ ،خوندیتوب او موفقیت لامل گرځي ، اسلامي امارت خپل ټول شرعي او دنیوي مصالح په وحدة الصف کې ویني او ترنورو نومونو او بیرغونو لاندي دلته ځانته فعالیتونه داسلام ، مسلمانانو او جهادي مصالحو په زیان بولي.

د افغانستان اسلامي امارت ددیني اخوت له مخې ستاسي خیر غواړي اوپه چاروکې یې دنه لاس وهني فکراو ارزو لري، بالمقابل له تاسونه هم د بالمثله رویې تمه لري او د اسلامي اخوت د رشتې له امله تر ې یوازې دخیرخواهي تمه کوي،په افغانستان کې دروان جهاد وضعیت ته په پام سره د اسلام او مسلمانانو خیر یوازې په دې کې دی چې په افغانستان کې جهاد تر متحد صف لاندې ادامه پیدا کړي.

۳ـ د افغانستان اسلامي امارت د خپل جهادي مقاومت په جریان کې تر یوه بیرغ او واحد قیادت لاندې امریکایانواو دهغوی ملگرو ته ملاماتوونکې شکست ورکړی ،د هیواد له ښارونو پرته ټولې سیمې یې له کفري اشغال ،شرك اونوروخرافاتوڅخه خلاصې کړي او له دوه لسیزې مقاومت او راسخ پاته کیدو وروسته داسلامي امارت متحدصف په سیمه او نړۍ کې دنړیوال کفر په وړاندې د مقابلې یو الهام بښونکی حقیقت گرځیدلی، امریکایانواو داسلام نورو دښمنانو ډیر کوښښ کړی او کوي یې چې د دغه متحد صف په متلاشي کولو سره په افغانستان کې خپل اشغال ته د کامیابي زمینه مساعده کړي ، خو اسلامي امارت لکه څرنگه چې یې په پوځي ډگر کې هغوی ته شکست ورکړی همدا ډول غواړي د خپل متحد صف په لا مرصوص ساتلو سره د هغوي راتلونکي تخریبي پلانونه هم ورشنډ کړي نو خدای مکړه په دغه حساسه مرحله کې چې له وړاندې د کفارو له ډیرو دسیسو سره مخ یو،ستاسي ملگري باید داسې اقدام ونه کړي چې د مجاهدینو قومانده ورسره وشیندل شي، صف کې درز راشي او زموږ د دښمنانو هیلې او آرمانونه چې د اسلامي امارت په منځ کې درزونه اچول دي، ورسره پوره شي. .

۴ـ له افغانستانه پرته د اسلامي نړۍ ډیرنور هیوا دونه هم د امریکایانو د ظالمانه توطیو ښکار او په یوه ډول نه یوه ډول د هغوي تر اشغال لاندې دي ، دا چې تراوسه په دغو هیوادونو کې مسلمانانو کومه ملموسه کامیابي نده ترلاسه کړې لامل یې د هغوی تفرق او د یوه واحد قیادت نشتوالی دی ، نو د دې لپاره چې دبې اتفاقۍ فتنه په افغانستان کې پیدا نه شي اسلامي امارت بیا هم دلته یواځې دافغانستان د اسلامي امارت تر واحدصف لاندې جهادي فعالیت ته اجازه ورکول ستردیني او جهادي مصلحت بولي او د هغه په مقابل کې د بلې ډلې اوصف ایجادول د جهاد ، مجاهدینو او اسلامي مصالحو په خلاف عمل بولي.

۵ - اسلامي امارت د نړیوال کفر ، شرکي اوبدعتي سلوکیاتو پرخلاف خپل جهادي فعالیت د کتاب الله اوسنت نبوي د احکامو په رڼاکې پرمخ بیایي ، شرعي او اسلامي مصالح ترهرڅه ورته اهم او د هغوي د تحقق لپاره د نړۍ د مسلمانانو مادي او معنوي مرستي او حمایت ته اړتیالري،نو له تاسومحترمونه مو هیله داده چې دافغانستان داسلامي امارت په اړه له هغو منابعو نه معلو مات تر لاسه نه کړئ کوم چې دلته دمختلیفو عواملو له مخې له اسلامي امارت نه مایوسه شوي او یا هم په جهادي صف کې د جرمونو د ارتکاب له امله له دې مقدس صف څخه ایستل شوي دي بلکې مستقیما داسلامي امارت له مسئولو مشرانو،رسمي مطبوعاتو پیژندل شویو

ویندویانو نه خپل معلو مات او اطمنان حاصل کړئ ،ترڅومو یو له بل سره اطمنان نورهم زیات شي.

۶ـــ د افغانستان اسلامي امارت په افغانستان کې د امریکایانو او ناټو شکست په ټوله نړۍ کې د صلیبي ځواکمنۍ شکست بولي، او دغه لویه کامیابي د اسلامي امارت د مجاهدینو د اخلاص، توکل صبر او وحدت په برکت الله جل جلاله پرهغوی لورولي ، نورهم د اسلامي امارت مشرتابه او مجاهدین له الله تعالی څخه د دغې جهادي لارې د موفق اوحسن انجامولو غوښتنه کوي ،او د نړۍ له مسلمانانو او جهادي نهضتونو ته لري چې د اسلامي امارت د بریا ته رسیدونکي جهاد هراړخیز ملاتړ او مرسته وکړي، نه داچې په جهادي صف کې د تفرق په خپرولو سره مجاهدین ناکام او ځوریدلی امت د کفر د شکست له خوښیو محروم کړي.

۷ ـ د افغانستان اسلامي امارت په افغانستان کې د صلیبي متجاوزینو پرخلاف جهاد او په دې لاره کې مهمې لاسته راوړنې لومړی د الله جل جلاله په نصرت او بیا د سلګونو زره شهیدانو، زخمیانو ، اسیرانو ، یتیمانو او کونډو په زحمتونو تر لاسه کړي.

همدغه ټولې قربانۍ یې تریوې قومندې او یوه بیرغ لاندې په یوه متحد صف کې ورکړي اوس که خدای مکړه د جهادي صف په متفرق کیدو سره د مجاهدینو ترمنځ خپل منځي اختلاف ته لاره خلاصیږي دغه ټولې قرباني او لاسته راوړنې به بیا د همدغو اختلافاتو ښکار کیږي او ځوریدلی مسلمانان به یې له ثمرې څخه محروم کیږي،اوداهم یو ترلر روښانه حقیقت دی چې دافغانستان اسلامي امارت نه تنها په افغانستان کې بلکې په ټوله اسلامي نړۍ کې دخپلې روښانه ماضي،داسلام په لار کې دسترو قربانیواو مدبرانه اسلامي سیاست له امله خورا زیات محبوبیت او مقبولیت لري نو الله دې نه کوي که دلته اسلامي امارت ته دهغو کسانو له لوري جنجال جوړیږي څو ک چې ځانونه په تاسوپوري ترلي بو لي نو په دې سره به دټو لې نړۍ مسلمانان له تاسو نه خپه شي.

۸ ـــ داچې دنړۍ په بېلابېلو برخو کې اسلامي تنظیمونو او شخصیتو نو په ډېرو سختو شرایطو کې ډېرې زیاتې قربانۍ ورګړي اوهرڅوک په خپل ځای کې څه ناڅه لاس ته راوړنې لري،نظم لري،اوپیروان لري اودا هر څه یې په خورا ډېرو تکالیفواوقربانیو تر لاسه کړي دي نوتاسوته مومشوره داده چې دنړۍ په هیڅ برخه کې اسلامي حرکتونو ته داسې شرایط رامنځ ته نکړئ چې خدای مه کړه دهغوئ خدمتونه متا ثره شي ،نظم یې خراب شي ،اوپه خپل منځي اختلاف کې ښکیل شي اوبلاخره دکارونو دطرز په اختلاف سره یا دنظر په اختلاف سره خبره تر وینو تو یولو ورسیږي الله دې موږ او تاسو ټول له داسې حالت نه وساتي،تاسي باوروکړئ چې داډول حرکات ستاسوفعالیت او ستاسو شهرت ته نه جبرا نیدونکی زیان رسوي ،د مسلمانانو خصوصا مجاهدینو او صالحو کسانو د شهادت سبب ګرځي، دشهیدانو وارثان مایوسه کوي او دښمنانو ته دبېلابېلو حربو د استعمال موقع په لاس ورکوي.

۹ ـــ تاسو ته بهتره معلو مه ده چې په افغانستان کې په تیرو څه کم څلو رو لیسزو کې ډیرې زیاتې ګډوډۍ،قومي ،سمتي او تنظیمي دښمنۍ ،دکفري قوتونو مسلسلې مداخلې او نوري نا خوالې تیرې شوي دي چې او س هم ډیر خلك شته چې هم هغه عقدې او دښمنۍ پالې له همدې امله دلته په افغانستان کې ډیر ځله داسې کسان دمجاهدینو په لباس کې را پورته شول چې مقدس جهاد بد نام کړي ،خودا چې له یوې خوا دالله تعالی نصرت له مجاهدینو سره مل و او له بلې خوا داسلامي امارت مسئولین ددې خاورې له ټولو وګړو سره بلد او دجهاد پخې تجربې لري نو هغه کسان ژر پیژندلای او له صحنې ایستلای شي څوك چې جهاد بدنامول غواړي اوله دې جنجاله تراوسه پورې الله تعالی ډیر ښه ساتلي یو، الله دې نه کوي الله دې نه کوي چې دغه بدمخي اوغرضي کسان ستاسودلیرې والې او په

افغانستان کې دهغوی له نا بلدتیا څخه ستاسو په نامه ناوړه استفاده ونه کړي ،نوځکه موږ بیا هم ډیر ټینګار کوو چې دي خطر ته تاسو لازیات متوجه شی ترڅودلته داسلامي امارت له موجوده تشکیلاتو دباندي بل صف اجادنشي . څرنګه چې جهاد خپل هدف (اعلاء کلمة الله) ته رسول د ټولو مسلمانانو خصوصا د مجاهدینو شرعي فریضه ده، نو تاسو هم باید دخپل دیني مکلفیت له مخې د اسلامي امارت له ورونو سره دهغوی د وحدت او قوي ساتلو په کار کې مرسته وکړي، نه داچې خدای مه کړه له لرې ځای څخه داسې تصامیم ونیسي چې هغه دلته د مجاهدینو دمشرانو، دیني عالمانو او په زرهاوو صالحو مجاهدینو د خپګان او له تاسوڅخه دهغوی د مینې او اخلاص د له منځه تلو سبب وګرځي او اسلامي امارت دلته په څه کم څلورو لسیزو کې ددوه میلیونه مبارکو شهیدانو دپاکو ارمانونودساتلو په موخه دخپلو لاس ته راوړنو نه ددفاع په خاطر په عکس العمل لاس پوري کړي.

وصلّی الله علی نبیّنا محمد وعلی آله و صحبه أجمعین.

والسلام علیکم و رحمة الله و برکاته
دافغانستان داسلامي امارت نایب اودرهبري شوری
سرپرست الحاج ملا اختر محمد منصور
۱۴۳۶/۸/۲۹هـ ق
۱۳۹۴/۳/۲۶هـ ش ــ ۲۰۱۵/۶/۱۶م

# ډرون طیارو ته د سیمکارت نمبر مهم دی که د موبایل؟

مشهوره دا ده چې د سیمکارت نمبر او موبایل نمبر دواړه یو دي خو داسې نده.د موبایل نمبر جلا دی او د سیمکارت نمبر جلا.

د موبایل نمبر پنځه لس عدده وي خو د سیمکارت نمبر لس عدده.

د سیمکارت نمبر هغه وخت فعالیت کولای شي چې موبایل روښان (چالان) وي خو د موبایل نمبر بیا هر وخت کار کوي (صرف هغه وخت یې نکوي چې د موبایل بیټرۍ وباسو)، د سیمکارت نمبر د شبکو تر نظارت لاندې وي خو د موبایل نمبر بیا مستقیما ډرون ځاري.

د سیمکارت له لارې صرف د متکلم او شخص د آواز او غږ ثقلت،زیر،بم او حجم معلومېدای شي خو د موبایل له لارې بیا د فرد موقیعت،د غږ ثثبیت او پرتله هم معلومېدای او ترسره کېدای شي.چې دېته وال فون وایي.

وال فون دا معنا چې احمد په موبایل کې خبرې کوي د ده فاصله څومره ده،ارتباط یې له چا سره دی؟

ولې هره ورځ ډېر زنګونو ورته راځي؟ آیا غږ یې پخوا هم له موږ سره ثبت و؟

آیا په یاده شوې ساحه کې زموږ جاسوس شته دی چې د ټارګېټ غمې په یاده ساحه کې ځای پر ځای کړي؟

آیا کولای شو د احمد له لارې دده نور ملګري هم پیدا کړو؟ تر څو چې هدف ترلاسه نکړو هغه به ټارګېټ نه ګرځوو. څنګه خپل د موبایل نمبر معلوم کړم؟ ولیکه #۰٦#* یا په چینایي موبایلو کې #۰۸#* دایل کړه.

بیا به تاته نمبر ښکاره شي چې ۱۵ عدده دی دا ستا نمبر دی.

اوس څه وکړم؟؟ اوس دا لاندې مشورې واوره!

کوښښ وکړه په شپه کې هره شپه او په ورځ کې د خطر په وخت خپل موبایل مړ کړه بطرۍ یې هم وباسه!

که کولای شې د یو سیمکارټ پر ځای دوه یا درې سیمکارتونو استعمال کړه تر څو د تماسونو د تعدد او کثرت له وجې څوک دربانديې شک ونه کړي.

چې کله مهمه خبره وي او ستا اساسي هدف هم وي لومړی په مسج کې مخاطب ته احوال ورکړه پاتې خبرې بیا په موبایل کې ورسره وکړه

ددې لپاره چې ستا غږ تثبیت نشي نو د خبرو پر وخت خپلې خولې ته دسمال ونیسه تر څو ستا د غږ پېژندل ګران شي.

د واضحو خبرو پر ځای کنایي استعمال کړه تر څو د اړیکو کنټرولر ستاسو په خبرو پوه نشي.

یوې شمېرې ته پرله پسې زنګ مه وهه که یې څو کسانو ته هم وهې نو ځنډ ورکوه.



اسامه وزیروال

# ظالمه څه نخرې دې وکړې!

په افغانستان کې د صلیبي تاړاکګرو خلاف جګړه څه لنډ. تنګ تاریخ نلري، کابو یوه نیمه لسیزه وشوه چې دلته د نړۍ ښکرور راغلي، په ډېره سپین سترګۍ سره یې د افغانستان اسلامي امارت ته اوبه ور خړې کړې او په ګران اسلامي هېواد یې یرغل راوړ.

د یرغل په موده کې یې افغان مسلمان ولس یوه نیمه لسیزه وځوراوه، شتمنۍ یې ترې د ابادۍ پر نوم چور .تالان کړې، عصمتونه یې د حقوق زنان پر نوم تار .تار کړل او انسانیت یې پر سپیو باندې وداړه.

د صلیبي تاړاک کبر او غرور د یو څو چاود پوندو او ګګر سرو له لورې د خاورو سره خاورې شو.

خړ .خړ ټانکونه یې د ژیړو پلاستیکي بوشکو په زور، فضاء ته پورته کړای شول او د مجهزو پوځیانو کریکې یې لکه د قوم لوط، په آسمان کې واورېدل شوې.

امریکایانو د جګړې په دوران کې د طالبانو پر خلاف ټولې هغه فکري حربې استعمال کړې چې لامله یې فکرونه منحرف کیږي او منظم صفونه ټوټه .ټوټه کیږي.

د حقاني شبکې او د توري بوړې جهادي محاذ نومونه جدا . جدا کارول او ډېرې بریالي عملیات یې د دوی په ځانګړو نومونو یادول؛ هدف یې دا وو چې په کلیوالو سیمو کې طالبانو ترمنځ د دلګیو په سطحه تربګنۍ وزېږوي، تنکي زلمکیان او مجاهدین پخپلو کې سره واچوي او دوی ورته د سیالګرو په توګه پر لوړه غونډۍ کېني.

مقاومت کال پر کال زیاتېده او د طالبانو صفونه لا زیات غښتلي کیدل، د نفاق هېڅ ځرک نه لګیده او هر مجاهد د اتفاق لپاره کوښښ کاوه؛ په دې وروستیو کې داسې هم ولېدل شول چې دوه هغه دلګي مشران، د وروستي کال د وروستیو بریالیو فتوحاتو پر امید، سره یو شول چې ترمنځ یې بېحده تاؤ تریخوالي شتون درلود ،ترڅو په متفقه توګه برید ونه پیل او سیمه د غرب له لاسپوڅو څخه تخلیه کړي خو؛

د بده مرغه چې ټولې هېلې مو د دې کال لپاره ناهېلې پاتېشوې او ډېرې تکړه او مخلص ملګري سخت مایوس شول؛ داسې فکر یې درلود چې څنګه د هغه چا پر خلاف وسله پورته کړم چې دیارلس کاله مې د سنګر یار و.

څنګه د هغه چا پر خلاف را پورته شم، او پر خلاف یې سنګر ونېسم چې دیارلس کاله یې پر امر، د صلیب ککرۍ الوځول شوې او مغرورې تنې یې ورته په وینو کې لت .پت کړې.

همداسې يو مايوسه ملګري راته کيسه کوله؛ هغه مهال په کلي کې چا د طالب نوم نشو اخېستلی، موږ به د شپې د ډېوې رڼا ته ناست وو او پټ.پټ به مو بمان جوړول.

په سبا شپه به ووتو؛ نه به را سره ټوپک وو او نه کلاشينکوف، يو ملګري به بم له ځانه سره اخېستی و او د بل سره به تفنګچه وه، د شپې په تياره کې به مو بم خښ کړ او بيا به مو چې له څو ورځو انتظار وروسته، د صليبيانو پر کومو اجل نيولو عسکرو ټانک انفجار کړ، له خوښۍ څخه به په جامو کې نه ځايدو او بيا .بيا به مو يو او بل ته مبارکياني ورکولې.

نن هماغه يار هلته ګوته په ماشه راته ولاړ دی، زه ورته مرتد ښکارم او دی مې پر وژلو ځان غازي ګڼي.

امريکايانو ته دا مهمه نه ده چې داعش مري که طالب؛ افغان مري که باغوان فقط چې مسلمان مري دوی ورته چکچکې وهي او خوبونه يې تعبير اخلي.

د داعشيانو او طالبانو په جنګ کې د عزم، ميړانې او شجاعت هغه هسک مينارونه را ونړېدل چې صليبيانو يې پر سر بلا ډالرې ورکولې، اما خيرات دې وشه خو د مړو په اروا دې مه شه کيسه را وشوه.

د ميړانې څلي مو يو پر بل پسې ونړېدل، په داسې توګه چې تاوان يې زموږ او ګټه يې د صليب شوه؛ په نړۍ کې يو .يو مجاهد په نښه کيږي او د وژلو لپاره يې خورا درانده مصارف تحمل کيږي، تبليغيان څوک نه بمباردوي، په خانقاوو کې ناست پيران او راهبان څوک نه چيړي، د روژې په مبارکه مياشت کې د خپل ژوند د ښېرازۍ او کافر د بربادۍ دعاګوی څوک نه وژني؛ بلکې هغه څوک د شپې په توره تياره او تور دغل کې هم وژل کيږي، څوک چې د جهاد نوم اخلي او جهاد د محکومو مسلمانو ملتونو لپاره د خلاصون يوازينی حل ګڼي.

هغه څوک چې د شپې او ورځې خوبونه يې پر ځان حرام کړي څنګه کولای چې له خلافت څخه منکر او باغي او مبارزه يې بې هدفه شي ؟!

څنګه به ضمير ته قناعت ورکړي چې د هغه څه لپاره يې چې يوه نيمه لسيزه مبارزه کړې، ترې منحرف شي ؟!

هيڅکله او هيڅ وخت نه؛ البته د خلافت د احياء لپاره فکري پوهاوی مهم دی، او د مجاهدينو له وژلو څخه اجتناب. هله به ته د خلافت کاروان مخته بيايې.

موږ که د ابراهيم عواد البغدادي خلافت ته ځغلنده نظر وکړو، تر اوسه يې له سل .دوه سوه شيعګانو پرته ټول مجاهدين شهيدان کړي، هغه مجاهدين چې پر وژلو يې امريکايانو د آرام ساه واخېسته او پر خلاف يې روان جهادي بهير خورا ټکنی شو.

که د بغدادي لښکريانو په سوريا کې مداخله نه وای کړې؛ د سوريا ولس به اوس په اسلامي ازادۍ کې ساه اخېسته او د سوريا مجاهدين به د عراق جهاد ته وزګار ول.

د جبهة النصرې مجاهدينو په چيغو .چيغو وژړل چې د خدای لپاره دلته مداخله مه کوئ، موږ بشار په ګونډو کړی او چې څنګه مو څملاوه؛ بيرته ستاسو مرستې ته در دانګو، عراق او افغانستان دواړه ازادوو او د ګډ خلافت اعلان کوو خو؛

بدبختانه چې شيخ بيړه وکړه او د نړۍ مجاهدين يې د پسماندګۍ هاغې کندې ته وغورځول چې راختل به يې کلونه . کلونه وخت واخلي!.

فتدبروا يا اولي الابصار

# د جهاد پلورونکو غبرګون

د ګډ حکومت اجرایوي مشر ! د امریکایي ځواکونو پر هغو عملیاتو اندېښنه ښودلې چې په پروان کې یې د جمعیت د ګوند د مشر په کور برید کړی او د وسلو یوه ډیپو یې له منځه وړې ده. ویل کیږي چې په دې برید کې چا ته زیان نه دی اوښتی، خو د وسلو ډیپو له منځه وړل شوې او ځینې کورونو ته هم پکې زیان اوښتی دی. د عبدالله عبدالله غبرګون له دې امله توند و چې دده په وینا د مجاهد کور تلاشي شوی او دا د مجاهدینو لپاره د زغم وړ نه ده. عبدالله وایي، چا ته به اجازه ور نه کړو چې مجاهدینو ته ستونزې پیدا کړي او یا یې هم کور تلاشي کړي.

په افغانستان کې امریکایي ځواکونو ۱۴ کاله د وحشت ستراتیژي خپله کړې وه، د خلکو په کورونو چاپې، په سپیو تلاشۍ او بمباري یې عادي چاره وه چې په کې لسګونه زره مسلمانان ووژل شول. لسګونه زره نور مسلمانان د امریکا په زندانونو کې کلونه کلونه پاتې شول. امریکایي ځواکونو پر ښځو او ان نارینه وو جنسي- تیري وکړل. امریکایي ځواکونو د افغانانو جسدونو ته اور واچوه او د مړو جسدونو ته یې سپکاوی وکړ. امریکایي ځواکونو په افغانستان کې کمیاوي او بیولوژیکې وسلې استعمال کړې او پوره کلي یې تر خاورو لاندې کړل. خو عبدالله عبدالله او پلویان یې چوپ وو. ځکه هغوی چې د امریکایي ځواکونو په بمونو کې سوځېدل، هغوی چې د امریکایي وحشت قربانیان وو او هغوی چې په زندانونو کې وراسته شول، د عبدالله عبدالله په شان جهاد پلورونکي او امریکایي غلامان نه وو.

عبدالله پر دغه پېښه سخت غبرګون ښودلی، خو هغه وخت غلی و چې د کندهار په پنجوایي کې امریکایي وحشي سرتېرو ۱۷ ملکي وګړي چې ښځې او ماشومان هم په کې شامل وو، لومړی ووژل او بیا یې اور ورته واچوه. عبدالله او ملګري یې هغه وخت چوپ وو چې امریکایي ځواکونو په شینډنډ کې پوره کلي تر خاورو لاندې کړل او لسګونه ښځې او ماشومان یې ووژل. عبدالله او تش په نوم مجاهدین یې هغه وخت چوپ وو چې امریکایي ځواکونو په پکتیا کې له ماشومانو په زانګوګانو کې سرونه پرې کړل، سرې یې په ځاګانو کې واچول او پر ښځو یې جنسي تیري وکړل. عبدالله او ملګري جهاد پلورنکي یې هغه وخت غلي وو چې امریکایي ځواکونو په پکتیکا کې د جنازې پر مراسمو برید وکړ او لسګونه مسلمانان یې ووژل. عبدالله او خاین ملګري یې هغه وخت غلي وو چې امریکایي وحشي ځواکونو د فراه په بالابلوک کې د واده پر مراسمو برید وکړ او تر دوو سوو زیاتو کسانو ته یې مرګ ژوبله واړوله. عبدالله او مزدو ملګري یې هغه وخت غلي وو چې امریکایي وحشي ځواکونو په کونړ کې پوره کلي تر

خاورو لاندې کړل. عبدالله او جاسوس ملګري يې هغه وخت غلي وو چې امريکايي ځواکونو له الوتکو په لغمان کې تنکي ماشومان او ښځې شهيدان کړل. عبدالله او امريکايي پلوه ملګري يې هغه وخت غلي وو چې امريکايي ځواکونو په وردګو کې پر جومات بريد وکړ او ګڼ لمونځ کوونکي يې شهيدان کړل. عبدالله او ملګري يې هغه وخت غلي وو چې په ميدان ښار کې امريکايي ځانګړو ځواکونو ژوندي انسانان تر خاورو لاندې کول. عبدالله او ملګري يې هغه وخت غلي وو چې الماني ځواکونو پر ملکي خلکو په کندوز کې بمباري وکړه او ۱۵۰ ملکي وګړي يې شهيدان کړل. دغه راز عبدالله او ملګري يې د امريکا او ناټو په هغو نورو زرګونو جرمونو او جنايتونه پټه خوله وو چې په تېرو ۱۴ کلونو کې يې په افغانستان کې وکړل.

خو عبدالله د خپل ګوندي د وسلو د ډيپو پر له منځه وړو توند غبرګون ښيي. داسې لکه د هغو لسګونو زرو بې ګناه کسانو سره هر ډول جنايت او د هغوی وژنه چې امريکايي ځواکونو ته روا وي او دا کړنه ناروا. داسې لکه هغه ريکارډ ټينګونکي جنايتونه چې سم وو او دا کار ناسم. داسې لکه امريکايي ځواکونو چې همدا لومړني عمليات کړي وي.

عبدالله او جهاد پلورنکي ملګري يې يوازې د امريکا پر نورو جنايتونو غلي نه وو، بلکې مرسته يې ورسره وکړه، ستاينه يې وکړه او د امريکا هر جرم او جنايت ته يې مشروعيت لټاوه. خو د افغانستان مسلمانان پوهيږي، هغوی مجاهدين او جهاد پلورنکي پېژني. هغوی هغه کسان پيژني چې ځان ته مجاهدين وايي، خو د امريکا قراردادیان او سياسي ملاتړي دي. افغانان هغوی پېژني چې له امريکا سره يې د کرايي قاتلينو او جاسوسانو دنده ترسره کوله. له همدې امله نور د جهاد او مجاهد په نامه سوداګري نه کيږي او د خدای په مرسته به ډېر ژر له دغو جهاد پلورنکو سره محاسبه هم کيږي.



## چالاکي

ميلمه ورته راغی، زوی ته يې وويل: زويه ګران ميلمه مې راغلی، بازار ته ولاړ شه او ښه غوښه راوړه، (ميلمه يې خبري اوريدلې) زوی يې بازار ته ولاړ، بيرته تش لاسونه راغی، پلار يې ورته وويل: غوښه دي ولې نه راوړه؟ زوی يې وويل: کساب ته ورغلم، مال تر ټولو ښه غوښه راکړه، ول: داسې غوښه به درکړم لکه کوچ، له ځان سره مې کړه: نو بايد کوچ واخلم، د کوچو دکاندار ته ورغلم، مال: ښه کوچ راکړه، ول: داسې خواږه کوچ به درکړم لکه شات، مال نو بايد شات واخلم، دکاندار ته ورغلم مال بهترين شات غواړم، ول: داسې صفا شات به درکړم لکه اوبه، له ځانه سره مې وويل: اوبه خو کور هم شته، نو دا دی راغلم، پلار يې ورته وويل: ماشاء الله د خپل پلار په څير سخي يې، او پلار يې ورو په غوږ کې ورته وويل: زويه په دې چالاکي کې به دې يو تاوان کړی وي او هغه دا چې په دومره دکانونو ګرځيدلې بوټونه خو به دې ښه سولولي او زاړه کړي وي، زوی يې ورته وويل: پلارجانه بيغمه اوسه د ميلمه بوټونه مې وړي وو.

شهید زوی

# وحشت بیا په برما کې

دا انساني فطرت دی چې نیک نامي هرڅوک خوښوي اوپدې لارکې خلک ډېرې قربانۍ هم ورکوي، دنوم ګټلولپاره ډېرې خلک ځانونه دمرګ دخطرسره هم مخامخ کوي .

نوبرعکس بدنامي هرڅوک بده ګڼي اوترې دځان ساتلو کوښښ کوي ؛د فردیاکورنۍ بدنامي هم هرڅوک بده ګڼي خودقوم بدنامي بیاډېره بده وي چې تاریخ یې هیڅکله نه هېروي .

دبرما دولت ،بودایې ولس اوبودایې مذهبي مشرانونن خپل مذهب ددې هېواد داوسېدونکومسلمانانوپرضد دظلم او وحشت له امله دهمداسې تاریخي بدنامۍ سره مخامخ کړی حال داچې ددې مذهب دمشرمهاتمابوداپه باره کې مشهوره ده چې هغه دامن اوعدم تشدد داعي و اودحیوان مرګ به یې هم دانسان دمرګ سره برابرګڼلو.

داڅوکرښې چې لیکم له ۲۰ زرونه زیات دبرماهغه روهنګیامسلمانان چې دوحشي-بودایانو دظلم نه دځان ژغورنې په موخه یې خپل کورونه اومالونه پرېښې دي اوپه زروکښتیوکې یې ځانونه دسمندرغېږته غورځولي لاهم ورته نجات ندی ورکړل شوی اوله څوسوو هغوچې دترکې له لورې دورلېږلو شویوکښتیوپه مرستې ژغورل شوي نورټول یې داندیمان جزیرې اودبنګال دخلیج په سمندري حدودوکې بې یارومددګار دسمندر دخونخوارو څپورحم اوکرم ته پرېښودل شوي.

دنړیوالو ادارو له لورې دورکړل شویوخبرونوله مخې په دوۍ کې ګڼ شمېر یادخوراکي موادواودڅښاک داوبو دختمېدو له امله دمرګ ښکارشوي اوسمندرته غورځول شویدي اویا ترې د انسانانو قاچاقبرانوپیسې اخستی دي اودمختلفو هېوادونو په ناآبادوداسې جزیروکې یې پرېښې دي چې نه ترې څوک خبردي اونه دوۍ نړۍ دخپل ځان دشتون نه خبرولای شي ؛ یواځې ۳زرتنان یې داندونیزیا،مالیزیا اوتای لیندساحلونوته په رسېدلوبریالي شویدي چې پدې هېوادونوکې دسخت مراقبت لاندې په کمپونوکې مېشت کړای شویدي .

په ناآبادوجزیرواوسمندرکې دباقي پاتې مسلمانانوبه ایله تر هغې دژوندي پاتې کېدلوتمه وي ترڅوچې ورسره اوبه ، خوراکي مواد اوتېل نه وي ختم شوي .

تای لیندچې نا اسلامي هېواد دی ترې ګیله نشته ، وایه داندونیزیا اومالیزیاچې دواړه اسلامي هېوادونه دي خوهم یې خپلوسمندري څواکونوته حکم کړی و چې ساحلونوته ترې روهنګیامسلمانان رانېږدې نه شي او دایې هم ویلي و چې دبرمانه ددلته راغلومهاجرینودبېرته ستنولوپه هکله غورکوي ځکه چې داوړدې مودې لپاره دامهاجرین نشي پاللی . بیاوروسته دتېرې مۍ میاشت په وروستیوکې چې په مالیزیا کې ددرې واړو هېوادونو دباندنیو چارو وزیرانو سره پدې اړه ناسته وکړه نودمالیزیا دباندنیوچارو وزیر(( نیفاامان )) رسنیوته وویل : زمونږهېواد اواندونیزیابه چې په تېرو اوونیوکې دخپلوساحلونونه

روهنگیامسلمانان ستنول ددې نه پس به یې نه ستنوي ؛ هغه پردې خبرې اعتراف و کړ چې دبرمانه راوتلي سمندرکې راګېرمسلمانان ربښتیاچې په داسې بدحالت کې دي چې مرستې ته اړتیالري اوددوئ همدې بدحالت ته په پام سره موږچمتویوچې په خپلوساحلونوکې یې په کمپونوکې مېشت کړوخویواځې دیوکال لپاره ؛ نړیواله ټولنه باید ددوئ دستونزې داوږدمهاله حل په اړه غوروکړي.

دیادولووړه چې ددې درې واړو هېوادونو دباندنیو چارود وزیرانو ترمنځ دناستې په جریان کې هم داندونیزیاپه ساحلي سیمو کې ګب نیونکو ۳۵۰ روهنګیامهاجرینو ته نجات ورکړ اوترساحله یې راورسول، په نجات موندونکوکې عبدالحق نومي یوتن رسنیوته وویل چې له ۴میاشتو راهیسې په سمندرکې بې سرنوشته بند پاتې وواوهیڅ نه پوهېدوچې پرکوم لورولاړشو؟

کب نیونکورسنیوته ویلي وچې له ساحله کابو ٦٥کیلو متره لرې سمندر کې دوئ یوه داسې کښتۍ دډوبېدوپه حال کې ولیده چې کابو ۴سوه روهنګیا مهاجرین به پکې ناست وو.

له دې ناستې وړاندې داندونیزیا دباندنیوچارو وزیر ((ایټنومرسوري )) رسنیوته ویلې وچې دبرما نه دهجرت کونکوستونزه دومره کوچنۍ نده چې دیویادوه هېوادونوپه ناستې حل شي ؛ پربرما دډېرفشار راوستلواړتیاده ترڅو دمسلمانانو مدني حقوق ومني او ددې هېوادنه دهجرتونو مخه ونیول شي خوله بده مرغه چې پدې اړه په هیڅ مذاکراتوکې دبرما دولت شرکت نه کوي اوڅه چې په برماکې روان دي هغه بې بنسټه تورونه ګڼي .

حقیقت دادی چې دبرمانه دمسلمانانوله ویستلوپرته دبرما دولت بل هیڅ ته هم ندی تیار ځکه خودمی په ۲۹ مې نېټې چې دمختلفوهېوادونونه دکډه شویو کډوالوپه اړه د تای لېنډپه کوربتوب د۱۵هېوادونوترمنځ کانفرانس کېدونکی و نودبرماد ولسمشر د دفتر مشر(( ژوهتای )) وویل چې پدې کانفرانس کې به پدې شرط ګډون وکړي چې دروهنګیا مسلمانانویادونه به پکې نه کېږي ځکه چې هېوادیې نه روهنګیا منې اونه دامنې چې هېوادوال یې ګینې چرته کډه شویدي.

نړیوالې رسنۍ وایې چې اوس هم نېږدې ۲۰ زره روهنګیامسلمانان دسمندرپه مختلفوبرخو کې بند پاتې دي چې دمرګ دسخت ګواښ سره مخامخ دي اوژغورنې ته اړتیالري خودبرمادولت ښه په بدماشۍ له دې انکارکوي چې ګینې کوم هېوادوال یې دظلم ښکاردی یاله دې هېواده څوک کډه شویدی !؟

د نړۍ دهرګوټنه ددې ۲۰ زروتنانوپه اړه اندېښنې راپورته شویدې اوورته دنجات ورکولوغوښتنې کېږي خو دنوبل جایزی ګټونکې دبرماسیاسی مشره آنګ سان سو چی چې لویدیځ یې دامن سفیره اوپه برماکې دبشر دحقوقو اوډیموکراسۍ داعادی لویه اتله ګڼي هغې هم خپله اسلام دښمني ښکاره کړې پدې ټول وحشت یې داسې چوپتیاغوره کړیده لکه په هېواد کې یې چې یوبې ګناه انسان ته هم تکلیف نه وي رسېدلی ؛ پر مسلمانانو د روانو ظلمونو پرضدیې یوه کلمه هم دخولې نه ونه ویستله دظلمونو دودرولو غوښتنه خوډېره لرې خبره ده دمسلمانانو دعامه وژنې دهماغه پیل په ورځوکې چې دهغې نه وپوښتل شول چې داراکان مسلمانان ته دبرما نفوس ګڼې که نه ؟

هغې په کامل معصومیت اوګې وښوروله اوویې ویل ځه په دې اړه څه نه شم ویلی .

په سمندرکې دګڼ شمېرمسلمانانودمړینې دخبرونو دخپرېدونه پس دبشرحقوقونړیوالې ادارې هم دې اعتراف کولوته اړشوې چې دبودایانوله لورې پر روهنګیا مسلمانانوروان ظلم ددوئ نسل کشي ده ؛ بایدچې دمیانماردولت ددوئ پرضدد روان تشددمخه ونیسي ؛ دوئ

ددې هېواد نفوس ومني اودوئ ته ددوئ مدني ټول حقوق ورکړي خودبرمادولت دمسلمانانوپه حق کې پورته شوی هر اواز نامتوازنه وینا بولي اوښه په سپین سترګی یې ردوي؛ سپین سترګي او دمسلمانانو پرضد دروانو ظلمونو په اړه ددولت بې حسي دې حد ته رسېدلی ده چې دولت ژورنالستانو ته دمسلمانانو سیموته دورتللواجازه هم نه ورکوي ترڅو دمسلمانانوپرضد دروان وحشت نه نړۍ خبره نه شي .

۷۲۷هغه مسلمانان چې دسمندرله لارې داندونیزیا پر سرحد له کوزېدونه پس ونیول شول اودبرما ((تامي هلا)) نومي جزیرې ته یوړل شول دبرما دولت ددوئ سره هم چاته دلیدلواجازه نه ورکوي ترڅونړۍ له دې خبره نه شي چې دبرمادفوځ له لورې پدې جزیره کې ددوئ سره کوم ظلمونه روان دي؟ اراکان ولایت کې چې دمسلمانانو اکثریت دی مسلمانانوته پکې دګرزنده تلیفون دکارولواجازه هم نه ورکول کېږي ترڅوپه خپلومنځونوکې دیوبل سره رابطه ونشي- کړای اویودبل دحال نه خبرنشي- اویانړۍ دخپل حال نه خبره نکړي.

**رښتیا داده چې په برماکې دمسلمانانونسل کشی اواجتماعي قتل عام دهتلراوچنګېزنه هم پسې خبره ورواړوله؛ پرمسلمانو مېرمنو دهغوئ دخاوندانو، ورونو، مور پلاراود کورنی دنوروغړو ترمخه جنسي تېري کېږي اوبیاژوندئ سوزول کېږي؛ کوچنیان دخپلو میندو ترمخه وژل کېږي اوبیا اورته اچول کېږي ؛ پرمسلمانو سړو دخپلې کورنیوترمخه پټرول پاشل کېږي او اور ورته اچول کېږي؛ مسلمانان دونوپورې وتړل شي او بیا په ژوندون برمه کولی شي ؛ وحشت دې حد ته رسېدلی دی چې بودایان دمسلمانو حاملو مېرمنو دخېټو نه بچي راوباسي اوپه هماغه لمحه یې دمورترمخه اورته وراچوي.**

**دبرما داینتي مسلم موومنټ نومي تنظیم مشرآشن ورآتو ویلي دي چې موږ دې ته نه ګورو چې دمسلمان تړاو دکومې قبیلې یافرقې سره دی؟ موږ دامتیاز پرته دهر مسلمان وژل خپل حق ګڼو.**

نن مسلمانان دنړۍ په هرې برخې کې دکفري ظلم او وحشت ښکاردي خوپه برماکې داوحشت اوظلم بې ساری دی اودردناک اړخ یې دادی چې وحشت دهغه بودایانوله لورې دی چې دانسانانوسره محبت ؛ دانسانانوخدمت اوانسانانوته تکلیف نه رسول دخپل لاربښودبودا له اساسي لاربښوونوڅخه ګڼي .

تشویش له دې امله هم زیات دی چې وړاندې به فوځ پدې مجرم ګڼل کېدلوچې دبودایانو له لورې پرمسلمانانودروانو ظلمونو مخنیوی به یې نه کاوه اوهم به یې بودایان پر مسلمانانو ظلمونوته لمسول خوداځل یې پخپله هم مخامخ پدې ظلم کې برخه واخسته اوجنګي چورلکویې هرځای هغه مسلمانان په نښه کړل کوم به چې دبودایانودظلمونونه دځان ژغورنې لپاره دخپلوکورنونه دهجرت په موخه وتل .

دتېروڅو کلونو په موده کې دبرما په پېښو کې دیهودو دغلامی میډیا ناپیپلتوب هم ټولې نړۍ ته څرګندشو همدا نړیوالی رسنئ چې پریو چادکوم اسلامي حد یاتادیبي سزادجاري کېدلو اویاهم دکوم مسلمان له لورې دزیاتي دپېښې د رامنځته کېدلو پرمهال ټول اسمان په سراخلي او تر اوونیوپې پر مخالفت کې پروګرامونه جوړوي ، دتېروکلونو راهیسې دبرما ددومره ستر وحشت او ظلم روان حالت داسی وړاندي کوي لکه دنړۍ په کوم ګوډ کې چې یوه ډېره کوچنی پېښه رامنځته شوي وي ، که دنړۍ کوم ګوټ کې ۱۰ یا ۱۲ سپي هم په ظلم وژل شوي وای دوئ به پرې څومره غوغا کولای ؟! خو دلته یواځې په ۲۰۱۲م کال کې د ۴۵ زرو بې ګناه مسلمانانوپه وژل کېدو ، د۱۰ زره په بې درکه کېدو ، د ۲ سوه زرو په بې کوره کېدو او ۴ زرو په سوځېدو اود۵زرونه دزیاتو مېرمنوپه بې عفته کېدوټولو نړیوالو رسنیو د چوپتیا دشرم نه ډکه روژه نیولې ده خو دناپیپلتوب او

دقومي ، ژبني اومذهبي تعصبونو سره دمبارزې دعوه يې لاهم ربښتيا ګڼل کېږي ؟!

دنړۍ په کوم کوډ کې که دمسلمانانوله لوري پرکومې نامسلمانې يادمسلمانې ټولنې په کومې داسې مېرمنې چې دلويديځ دموخولپاره کارکوي تېرى وشي نود مېرمنواو کوچنيانو دحقوقوپه نوم نړيوالی ادارې يې ستره فاجعه ګڼي ، نړۍ يې په سر راخستې وي اودخپلورسنيوله لارې يې ترمياشتو مياشتو ستره غوغا جوړه کړى وي .

په ملالی يوسفزۍ خويواځې يو ډزوشواوپکې هغه ټپي شوه خوچې دلته دغرب سترې موخې وې نونړيوالو اداروهغه څومره ستره مظلومه معرفي کړه او دنوبل دمډالونوترحده څومره لوړومقامونوته يې ورسوله ؟!

له هغې وړاندې چې په يوې جعلي ويډيو کې دسوات يوې مېرمنې ته په دورو وهلو دتأديبي سزايو ه سحنه ښوول شوې وه نو داسلام دبدناملوڅومره هڅې و شوې ، دامريکا دولسمشر۔او دملګرو ملتونو داداري سرمنشي۔په شمول دلويديځ ټولومشرانو ددې هرعمل بيا بيا غندنه وکړه اوپه غربي رسنيو کې داخبر په پرله پسې ډول په دومره اهتمام خپورشو او دومره زياتې تبصرې پرې رامخې ته شوې لکه دنړۍ په کوم هېواد چې اتوم استعمال شوى وي اويا پکې ستره زلزله ياطوفان رامنځته شوى وي چې پکې په سونوزره انسانان له منځه تللې وي .

همدارازچې په تېرو کلونو کې زموږ په هېواد کې په کوم دولتي پوست موظفه مېرمن وژل شوې يا دکومې مخ لوڅې زده کونکې مخ ته چاتېزاب وراچولي دي او پړه يې پرطالبانو وراچول شويده نو په نړۍ کې دطالبانو دبدنامولو اونړيوالوته ځان دمېرمنو دخيرخواه معرفي کولو په موخه هرغربي مشر۔په ډېروسختو ټکوددې عمل غندنه او عاملينوته يې دسزا ورکولو غوښتنه کړيده او غربې رسنيوهم ترورځوورځو دبل هرخبراوپېښې نه ورته زياته توجه کړيده.

دبغلان ولايت اوسېدونکې دسهارګلی په نوم يوه مېرمن چې دخپل مېړه او د کور دځو نوروغړوله لوري دزورزياتي ښکارشوى وه ولې يې موضوع په ټولې نړۍ کې شهرت ومونډلو او کابو يوه مياشت پس هم غربي مشرانو او رسنيو دا پېښه نه هېروله ؟

ځکه چې نړۍ کې ددې فکرخپرول مقصود و چې مسلمانان مېرمنو سره ظلم کوي او حقوق يې ترپښولاندې کوي او موږيې دحقوقوداعادې هڅې کوو .

اوبل هدف داو چې دخپلو حقوقونه ددفاع او دخپل مظلوميت پرضد داوازپورته کولو په پلمه افغان مېرمنې له کورونوراوه ويستل شي اوستر يې مات شي .

همدا راز کابو کال وړاندې چې دګوډاګۍ ادارې استخباراتو دتخار په بې بې هاجره نومي ښوونځې کې ځوانجونې مسمومې کړې او پړه يې پرطالبانو ورواچوله نو ترورځوورځوداخبره دنړيوالو رسنيو دسرټکى او دلويديځوالو مشرانو او پوهانو لپاه په زړه پورې موضوع وه .

په هندکې چې کابودرې کاله دمخه يوه انجلۍ دځوتنانو له لورې دجنسي تېري ښکار اوبيا يې په روغتون کې څو ورځې پس ساه ورکړه نودې نړۍ څومره ولړزوله ؟!

نوهمدا غربي مشران او نړيوالی سترى ادارې چې دسوات ،هند، لغمان ، قندهار، بغلان ياتخار دمېرمنوځانونه خواخوږي ښکاره کوي دبرما دمظلومو مېرمنو سره يې خواخوږي ولې نه راښکاره کېږي ؟ حال دا چې دبرما پرمېرمنو شوى ظلم بې ساري او دظلم دښکار شويو مېر منوشمېره بېخي زياته وه ، داموږ نه وايو بلکې ايمنستي انټرنيشنل نومې بين المللې ادارې په برما کې د٢٠١٢م دجون دناورين په اړه په خپورشوي راپورکې ويلي و ,, د٢٠١٢ م دجون په سرکې چې پر مسلمانانو کومې حملې پيل شوې وې تر آخره پکې لږترلږه پنځه زره مسلمانې مېرمنې دبودايانو له لورې دجنسي تېري ښکارشوې ''

نودا اوس ډېره عجیبه ده چې په یوې مېرمنې دتېري له امله دنیا په سرراخستل کېږي اوپه برما کې چې لږترلږه پنځه زره مېرمنې دجنسي- تېري ښکارشوي او په زرونو نورې وژل شوې اوبې درکه شویدي نو وربانـدې ددوئ هیڅ پروا نشته ، غربي مشران او رسنۍ پرې ټول چوپه خوله دي ، عملي اقدام خوپرېږده ژبنی خفګان ، احتجاج ، دمظلوم سره خواخوږي ، دظالم غندنه ، ورته دسزا غوښتنه او ورسره پرېکوڼ هیڅ هم رامنځته نه شول دا امتیازي سلوک په نړۍ کې ولې روان دی ؟

داځکه چې هلته دعام مسلمان او مجاهد بدنامول او داسلام دیوې تادیبي او تعزیري سزا سره دخلکو نفرت پیداکول هدف وو اودلته په برما کې دامظلومې خوراني مسلماناني وې اوظلم دوحشي کفاروله لورې ترسره شوی اوکېږي او داخومعلومه خبره ده چې دکفارو له لورې پر مسلمانانو ترسره شوی هرظلم لویدیځ عین عدل بولي .

نوپه برماکې چې د زرونومېرمنو او کوچنیانوپرضد دا دومره ستروحشت روان دی دا اداري یواځې دغندنې یوڅوټکي له خولو راوباسي اونوره یې چوپتیا غوره کړیده .

ددې وحشت په مقابل کې دامریکا ،اروپایي اتحاد ،دبشرد حقوقو په نوم دنړیوالوادارو اوملګروملتونوچوپتیا خوبه اسلام دښمني وګڼو ؛دوئ چې دځمکې له مخه دمسلمانانوله منځه وړل یې ستره هیله ده اودنړۍ په مختلفوبرخوکې یې د مسلمانانوقتل عام پیل کړیدی نوپه برماکې یې چې دبودایانوپه لاس داهیله پوره کېږي ولې به یې مخنیوی کوي اویابه یې پرضداوازپورته کوي ؟

خوداسلامي نړۍ مجرمانه چوپتیا ته به څه نوم ورکړو؟

ویل کېږي چې په نړۍ کې دمسلمانانوشمېریوملیارد او٦سوه ملیونوته رسېږي (دمسلمانانوپېرى اداري داشمېره ناسمه بولي اووایي چې دمسلمانانواصل شمېره ۲زرو میلیونو ته رسېدلی) ؛ اوس ۵۸ نه بلکې داسلامي هېوادونو شمېر٦٢ ته رسېږي په نړۍ کې چې اوس اودنړۍ ٧٠٪ زیرمې ددوئ په ملکیت کې دي داسلامي نړۍ دفوځ شمېرله ۱۰۰ ملیونواوړي خوداټوله اسلامي نړۍ یواځې دبرمامظلومومسلمانانوته دوحشي بودایانو ددې وحشت نه په نجات ورکولوځکه نـدي توانېدلی اونه هم ددې وحشت پرضد داسلامي نړۍ نه کوم دپام وړاواز راپورته شوی چې کفري نړۍ دالکفرملة واحدة عملي مظاهره کوي خوبرعکس اسلامي نړۍ دسخت انتشارښکارده.

داسلامي نړۍ مشرانو دبرما دمظلومو مسلمانانو په اړه خپل یو فیصد مسؤلیت هم ادا نکړ ، دشرم نه ډکه دچوپتیاروژه یې نېولې ده اویواځې دبرما پر کمزورو مسلمانانو دروانو سترو ظلمونو ننداره کوي ، عملي اقدام خوله تمې لرې شی دی دروان ظلم د غندنې لپاره هم کوم مشردخولې نه مناسب الفاظ راونه ویستل ، نه یې پرې خنګه چې پکاروه خفګان ښکاره کړ ؛ نه دبرما دمسلمانانوسره دمرستې کولو لپاره راواندې شول اونه هم دبرمادمظلومو مسلمانانوسره دخواخوږۍ ښکاره کولو اودحال نه یې دځان خبرولو لپاره داسلامي نړۍ مشران تربرماورغلل.

پراسلامي نړۍ مسلط حاکمان په خپلو عیاشیو کې غرق دي اوهریوسره یواځې دخپل قدرت دساتنې فکردی ؛ دخپل قدرت ساتنې په بدل کې چې دوئ دکفرغلامۍ ؛په خپلوهېوادونو دکفري نظامونونفاذ ؛دشریعت سره دښمنۍ داسلامي نظام پرضدهرډول اقداماتواودخپل ولس قتل عام ته تیارېږي نودبرما دغریبومسلمانانوپه قتل عام به څه خفه شي اوچې دکفري بادارانودنارضایت سبب ګرځي نوولې به یې په حق کې اوازپورته کوي ؟

نوتراوسه هیڅاهم ددې مظلومانوپه حق کې دپام وړاقدام نـدی کړی یواځې دترکې ولسمشرددې وحشت پرضد اوازپورته کړ؛ مېرمنې یې دبرمامسلمانانوته خوراکي

مواد ولېږل اودولت څو کښتۍ واستولې چې په مرسته يې محدودو مسلمانانوته نجات ورکړل شو .

په ۲۰۱۲م او ۲۰۱۳م کلونوکې پرمسلمانانودترسره شويوسترو ظلمونوپرمهال هم يواځې دترکې ولسمشرطيب اردګان دخپلې مېرمنې سره يو ځای دبرما دمسلمانانو سره دغم شريکولو او داصل حالت نه يې دځان خبرولو په موخه تربرماورغلی و اوچې پرمسلمانانو دشويو ظلمونو اندازه ورته له نېږدې نه شوی وه نو نړۍ ولېدلو چې هغه او مېرمن يې دغم څومره اوښکې توی کړې ؟!

اسلامي کانفرانس چې دخپل وجودنه ترننه يې داسلامي نړۍ لپاره هيڅ داسې کارندی کړی چې وربانديې فخروشي داهيله ترې نه کېده چې ددې ظلم په مقابل کې به ګينې کوم جدي غبرګون ښکاره کړي يابه دبرما ددولت پرضد کوم اقدام وکړي خوداتمه ترې کېدله چې له نړۍ نه به دبر ما ددولت پرضد دعملي اقدام غوښتنه وکړي اويابه لږترلږه د مظلومو مسلمانانوسره دمرستې اوډظلم نه يې دراويستلو په لارو چاروډغورکولوپاره داسلامي دولتونو دمشرانويوه مهمه غونډه جوړه کړي خومتأسفانه چې تش په نامه دې اسلامي کانفرانس داکارهم ونکړاويوځل بيايې دخپل وجودبې ګټې توب نړۍ ته ښکاره کړ .

په برماکې دتېرو۲۰۱۲م او۲۰۱۳م وحشتونوپرمهال هم داسلامي کانفرانس دريځ له شرمه ډک و؛ پوره يو کال له يوجون مياشتې نه تربل جون مياشتې پورې دبرما دمسلمانانو قتل عام روان و څه معقول غبرګون يا دبرما ددولت پرضد کوم اقدام خو لرې خبره وه دنړۍ نه يې هم دبر ما ددولت پرضد دعملي اقدام غوښتنه نه وه کړی اونه يې ددې وحشت پرضد دخولې دغندنې تکليف کړی و؛ حقيقت دادی چې دې کانفرانس دبر ما دمسلمانانو سره ډېره ستره جفا ښکاره کړه او خپل حيثيت ته يې لوی زيان وراړولو ،دې کانفرانس ايله همدومره کړي وچې کله رمضان راغلو نوپه هماغو حساسوشپوکې ددې کانفرانس دسرمنشي اکمل الدين او غلو دجدې ددفترنه ايله دابيانيه خپره شوه چې ,, اسلامي هېوادونه دې په رمضان کې دبرماد مسلمانانوسره مالي مرستې وکړي ،،

داراکان ولايت چې دبنګله ديش سره ګډه پوله لري مسلمانواوسېدونکوېې بنګله ديش ته دورداخلېدلوهڅې وکړې خوپرهېواد مسلطې اسلام دښمنې اودهند لاس پوڅې ادارې دوئ ته نه دې هېواد ته دورننوتلواجازه ورکړه اونه يې په کښتيوکې سپرودبرما مسلمانانو ته دنجات ورکولولپاره کومه کوچنۍ هڅه وکړه .

دمعتبرونړيوالورسنيوله لورې دخپروشويوراپوروټوله مخې په برماکې دبودايانو WIRANTHO نومي تروريست تنظيم يواځې دروان ۲۰۱۵م کال په تېروکابو ٦مياشتوکې په برماکې ۱۵ زره مسلمانان ووژل چې په دوئ کې ۳ زره کوچنيان دي ؛ ياد اونوروتروريستوتنظيمونو د۲۰۰۹م نه تراوسه ۲۵۰ زره بې ګناه مسلمانان په شهادت رسولې دي

امريکا اودملګروملتونو ادارې ايله همدومره ويلي دي چې په ميانمارکې دې دروهنګيا مسلمانانوپرضد نسلي تعصب بندکړای شي اودولت دې دوئ ددې هېواد نفوس وګڼي ؛ تر څوچې يې دوئ خپل نفوس نه وي ګڼلی ترهغې دبرمانه دکډه شويوروهنګيامسلمانانوستونزه نه شي حل کېدای .

په برما کې دژوندي هولوکاسټ اودبشريت پرضد ددې دومره ستروحشت په مقابل کې همدادامريکا اوملګرو ملتونوغبرګون دی ؟! نورنه څه فشارشته نه پرېکوڼ شته ؛ نه بنديزونه شته اونه هم دامنيت شورى اقدام شته ځکه چې ددوئ جرم دادی چې دوئ مسلمانان دي ؛ که دوئ عيسويان يايهودان وای نودنړۍ درسنيو شور به تراسمانه رسېدلای وای ؛ دناټوفوځونه به دامن دقيام په نوم ډېردمخه حاضروای ؛ دامريکايې قيادت دسفرونو نه تم کېدونکې لړۍ به پيل شوی وای ؛ اروپايې اتحاديه دوربانديې يودبل پسې

بندیزونــه لگــولای دملگروملتونــوادارې بــه پرېکــړه لیکونــه صــادرولای ؛د مظلومــانو لپــاره بــه یــې دتېولوځزانوخــولې خلاصــې او دعربــو حاکمانودسـخابه هــم څــه حــد نــه وای خودوحشــت دابښکارشــوي چــې دبرماغریـب مســلمانان دي نوداهیڅ هم نشته.

عجیبــه داده چــې د۲۰۱۲م کــال پــه جــون کــې دمسلمانانود رامنځته شوي قتل عــام اوترننــه دمســلمانانو پر ضد دسترو ظلمونــو دلــړۍ پـردوام دبرماولسمشر(( تـین سین )) نه یواځې دا چې خپل خفگان ښکاره نکړ او نــه یــې دهېواد په لویدیځ کې دسترې بدامنۍ په مخنیوي کې دپاتې راتلوله امله ښښنه وغوښته بلکې د ۲۰۱۲دجــولای پــه ۱۹ نېټې یې په ډېرې سپین سترگۍ وویل ,,اراکان کــې مېشــت ۸ سوه زره روهنگیا مسلمانان په حقیقت کــې ناقانونــه کــډوال دي ، ددې لپاره چې په هېواد کې امن راشي بایددوئ دهېواد نه وشړل شي چېرته دبل هېواد نفــوس وگرځــول شي اویــاهم دبرمانه بېرون چرته مهاجرکمپ ته واستول شي ،،

په دې هېواد کې د ۱۰ پېړیوو راهیسې دمېشتو وگروپــه هکله دهېواد ولسمشردادښمنۍ اوتعصب نه ډکې څرگنــدونې او دنړیوالو دشرم نه ډکه چوپتیا؟!

**دولت چې څه وایې همدایې دمذهبي مشرانو غوښتنه هم ده درې کاله وړاندې چې په برماکې دمسلمانانوپرضد لوی وحشت رامنځته شوی واوډېرزیات دترحم وړ وو په هماغو شپوورځو کې بودایې مذهبي مشرانوپه یوې مشترکې خپرې شوې اعلامې کې ویلی و چې دروهنگیا مسلمانانوسره دې مکمل پرېکون اعلان شي ، ددوئ دې هېڅ ډول مرسته ونه شي او کوم چې په کمپونو کې مېشت شویدي خوراکي مواد او داړتیا نورشیان دې پرې بندکړای شي ترڅویا پدې کمپونوکې ومري اویا زموږ هېواد پرېږدي "**

**مذهبي مشران او دومره سخت زړیتوب خوبیا هم دعدم تشدد دفلسفې اتلولي د دوئ په برخه ؟ !**

حقیقــت دادی چــې دبرمــا دولــت دهیوادنــه دټولــو مسلمانانو ویستل اودبرمانــه داسلام دنــوم ختمــول غــواړي ځکه خو یې دمسلمانانو پر ضد دوحشــت نــه ډکــو اقداماتو یوه نه تم کېدونکې لړۍ پیل کړیده خو ملگرې ملتونه امریکـا او نورلویــدیځ پــه دې خــوښ دي چــې دبرمــا مســلمانان لــه برمانه ونه ویستل شي بلکې په هېواد کې دننه پاتې وي اوتل دبودایې دولــت ، بــودایې ولــس اوبــودایې مــذهبي مشرانوله لــورې دظلــم ښــکاروي ځکــه خــویې دمســلمانانو پرضــد پــه تــرسره شــوو ټولــو وحشــتونو دپیــل نــه ترننــه ســترگې پټــې کړیدي او هیڅکله یې دبرما دفاسد او ظالم دولت پرضد کـوم کوچنی اقدام ندی کړی .

برما چې په فوځې او اقتصادي لحاظ یوکمزوری هېواد دی ولس اودولت یې په خپل هېواد کې پـر یواقلیت دچـا لــه لمسون پرته دادومره سترظلمونه نه شي کولای ، معلــومېږي داچې څوک چې پــه عــراق ، افغانســتان ، فلســطین ، مــالي ، ســوډان ، صــومالیه اونوروځــایونو کــې مســلمانان پــه خپلــو لاسونو وژني هماغــوئ پــه برمــا کــې پرمســلمانانودکېدونکي هــرظلم شــاته ولاړدي ، دبرمادولــت اوبودایــان پــه شــاتېپوي اودهر وحشت نه یې پشپړ حمایت کوي .

مسلمانان چې دغاصبو یرغلگرواوتجاوزگرو نــه دخپلــو خــاورودآزادۍ اودخپلوځــانونو ، عزتونواومــالونو دســاتنې لپــاره ډگرتــه راووځــې اومقاومــت پیــل کــړي نــونړۍ یــې تروریستان بولي خوچې دلته په دولتي سطحه ستر تروریزم روان دی اود ماگ په نوم یولوی تروریستي تنظیم فعــال دی اوبالفعل یې په سونو زره انسانان په خپــل هېــوادکې بــې لــه کــوم جرمــه دوحشــت اودهشــت ښــکار دي نــو نــړۍ یــې نــه تروریستان بولي نه یې افراطیان گڼي اونه یې وحشي افعــال په تروریستي کړنو یادوي ؟! خوپه برمــاکې چــې ددې وخــت ډیرستربشري نــاورین روان دی ددې ستربشــري نــاورین پــه اړه نړۍ خپل څومره مسؤلیت اداکړاو څه ډول درېځ یې غوره

کړ؟ داېږه روښانه شوه اودنړۍ منافقت خلکوته ښه واضح شو.

امریکا ، اروپايي اتحاد ، ناټو او دامنیت شورۍ څه شول ؟ دوئ ته په برماکې روان ظلمونه ولې نه ښکاري ؟ ددوئ دتروریزم ضد مبارزه څه شوه ؟ بشر دوستي يې چېرته ولاړه ؟ دمظلومو انسانانو دژغورنې لويې دعوې يې څه شوې؟ دبرما وحشيان ولې بودايي تروریستان نه بولي؟

بس دادلویدیځې کفري نړۍ او ملګرو ملتونو په نوم دغلامۍ اداري اصل څېره ده ، خدای دې وکړي چې مسلمانان يې په غولونکو نارو نورونه غولېږي .



# د جُلیبیب کیسه

ابو برزه الاسلمي رضي الله عنه وایي: جلیبیب داسې سړی و چې له ښځو سره به یې خبري او مجلسونه کول، ما خپلې ښځې ته وویل: ګورئ هغه تاسو ته رانه شي او خبرې ورسره ونه کړئ، او کنه داسې او هاسې به درسره وکړم. ابو برزه وایي: د انصارو دا عادت و چې خور او لور به یې پيغله شوه او کوژده کوله به یې نو لومړی به رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغلل، او که د هغه به اړتیا وه ورته نو نه به یې کوژده کوله.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د انصارو یوه کس ته وویل: دا لور دې په نکاح راکړه، هغه ورته وویل: ولې نه، او په دې زه ویاړم، هغه ورته وویل: زه یې ځان ته نه غواړم، انصاري وویل: نو چا ته یې غواړې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: جلیبیب ته یې غواړم، هغه ورته وویل: زه به یې له مور سره مشوره وکړم او بیا به درته ووایم.

انصاري خپلې ښځې ته ورغی او ورته ویې ویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم زموږ لور غواړي، هغه خوشاله شوه خو ده ورته وویل چې ځان ته یې نه غواړي جلیبیب ته یې غواړي، ښځه یې غوسه او خپه شوه او ویې ویل: نه نه نه، جلیبیب ته یې نن ورکوم، قسم ده که یې هغه ته کوژده کړم.

انصاري له کوره روانیدی ځو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورشي او ورته ووایي چې د میرمنې یې نه ده خوښه، په دې وخت کې یې لور مور او پلار ته وویل: تاسو ته زما له پاره خطبه چا رالیږلې ده؟ هغوی ورته وویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم، دې ورته وویل: نو تاسو د هغه خبره ردوئ؟! ما د هغه خوښې ته وسپارئ هغه به هیڅکله ما نه ضایع کوي. پلار یې رسول الله ته ورغی او کیسه یې ورته وکړه، او هغه پیغله یې جلیبیب ته کوژده کړه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم غزا ته ووت، کله یې چې فتحه ترلاسه کړه خپلو ملګرو ته یې وویل: کوم ملګری خو به نادرکه نه یې؟ هغوی وویل: فلانی او فلانی نه وو، ده ورته وویل: تاسو نور هم وګورئ، هغوی وویل: نه، رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: جلیبیب نشته؟ دی وایي: هغوی یې پلټنه وکړه او د مړیو په منځ کې یې پیدا کړ، اووه کسان یې وژلي وو، وروسته دی هم وژل شوی و، هغوی رسول الله ته ورغلل او د ده کیسه یې ورته وکړه،

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورغی، د هغه خواته ودریدی، او ویې ویل: ده اووه کسان وژلي او بیا دی وژل شوی دی، دا زما دی او زه د ده یم، دا زما دی او زه د ده یم، دا خبره یې دوه یا درې ځله وکړه، بیا یې هغه ته قبر برابر کړ هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم په غیږ کې نیولی و او پخپله یې په قبر کې کېښود، او په روایت کې دا خبره نشته چې هغه ته یې غسل ورکړ.

راوي وایي: د جلیبیب میرمن ډېر څه لرل، په انصارو کې یوې ښځې هم د دې په څیر لګښت نه کاوه، په بل روایت کې راغلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جلیبیب میرمنې ته داسې دعا وکړه: یا الله! دې ته ډېر خیر ورکړه او ژوند یې مه خرابوه. اللهُمَّ صُبَّ عَلَيْهَا الْخَيْرَ صَبًّا ، وَلَا تَجْعَلْ عَيْشَهَا كَدًّا كَدًّا . رواه أحمد في " المسند " (٢٨/٣٣)، و البيهقي في " شعب الإيمان " (١١٤/٣)، ورواه البغوي في " شرح السنة " (١٩٦/١٤)، و ابن حبان في " صحيحه " (٣٤٢/٩.)



# له یرغلګرو سره هوکړه لیکونه؛

## زموږ په خاوره کې د هغوی ریښې لا پیاوړې کوي

**خبر:**

دافغانستان د پراختیا لپاره د اروپايي ټولنې او افغانستان ترمنځ د همکاریو هوکړه لیک بشپړ او لاسلیک شو. دغه هوکړه لیک دروان میلادي کال د جولای په درېیمه د جمعې په ماښام د اشرف غني او اروپايي ټولنې د سفیرانو په حضور کې په اصطلاح د ولسمشر- داقتصادي سلاکار حضرت عمر زاخېلوال او په بهرنیو چارو کې د اروپايي ټولنې د استازې مېرمن فدریکي موګیریني ترمنځ په ارګ کې لاسلیک شو.

اشرف غني په دې اړه جوړې شوې غونډې ته وویل، د دې هوکړه لیک په لاسلیکېدو سره به د افغانستان او اروپا ترمنځ د همکاریو نوی فصل پرانیستل شي. هغه زیاته کړه، د افغانستان او اروپا ترمنځ دغه شراکت به د افغان حکومت له هغه پروګرام سره مرسته وکړي، چې موخه يې افغانانو ته د برابرو کاري فرصتونو رامنځته کول دي. د نوموړي په وینا، غواړي چې هر افغان ته برابر اقتصادي فرصتونه برابر کړي او ډېر تمرکز به يې پر ځوانانو، مېرمنو او بې وزله قشر وي، ځکه چې اوږدې جګړې دغه درې طبقې ډېرې زیانمنې کړې دي. ټاکل شوې چې دغه هوکړه لیک د تصویب په موخه د اروپا پارلمان ته واستول شي.

**تبصره:** د اشغال له لومړۍ ورځې تر ننه افغانستان له ګڼو ښکېلاکګرو هېوادونو سره ډول-ډول ستراتیژیک، امنیتي او اقتصادي هوکړه لیکونه لاسلیک کړل، مګر دغو هوکړه لیکونو په هېواد کې د عام اکثریت په ژوند کې هېڅ مثبت بدلون رانووست. څه چې د دغو هوکړه لیکونو په ترڅ کې ترلاسه شوي، هغوی په هېواد کې ځانګړې پانګوال طبقه رامنځ ته کړې، چې د افغانستان د خلکو د ګټو پر ځای د ښکېلاکګرو هېوادونو ګټو ته ډېر وفادار دي. دغه پانګوال طبقه ایله د هېواد پنځه سلنه جوړوي. مګر بیا هم هغوی د هېواد په سیاسي، اقتصادي او امنیتي برخه کې له تقنین نه نیولې، تر سوداګرۍ، سیاست، قضا، لوړو زده کړو او جګړو پورې د ولس پر چارو واکمن شوي، چې د ۹۵ سلنه پاتې ولس ګټې او عامه خدمات يې له سخت تهدید سره مخ کړي دي.

لکه څنګه چې اشرف غني د دغه هوکړه لیک په اړه وویل؛ افغانستان به له اروپايي اتحادیې سره په ګډه په هغه بودیجوي چوکاټ کار وکړي، چې له مخې به يې په هرو څلورو کلونو کې د افغانستان بودیجوي پلان و ټاکل شي او له مخې به يې هر افغان ته برابر اقتصادي فرصتونه برابر شي، چې ډېر تمرکز به يې پر ځوانانو، مېرمنو او بې وزله قشر- وي. خو د هغه دغه ادعا د پانګوالۍ ایډیولوژۍ د سیاسي نظام ((ډیموکراسۍ)) د اساساتو له مخې یوه پوچه او بې معنا خبره ده. ځکه اوروپا او امریکا چې د ډیموکراسۍ زانګو بللې کیږي، هغوی په خپلو هېوادونو کې په دې نه دي، توانېدلي، چې خپلو ټولو اتباعو ته برابر کاري فرصتونه برابر کړي. ځکه د کپیټلیزم له مخې د ملکیت مطلقې آزادۍ بشریت له داسې ناورینونو سره مخ کړی، چې د هغوی خپل کارپوهان يې له حل څخه نور عاجز شوي دي. چې تر ټولو مهم ناورین يې د نړۍ د ۹۹ سلنه بشر پانګه یوې سلنه پانګوالو ترلاسه کړې او دا هغه څه دي، چې نه یوازې ځینې هېوادونه یا یو شمېر کسان يې له ستونزو سره مخ کړي، بلکې د نړۍ لوی اکثریت تهدیدوي، چې تر ټولو څرګنده بېلګه يې د همدا اوس اروپايي هېواد یونان دی.

بل پلو د افغانستان په بودیجوي برخه کې له ښکېلاکګرو هېوادونو سره د دا ډول هوکړه لیکونو لاسلیک کول، په هېواد او سیمه کې دهغوی ستراتیژیکو استعماري موخو ته لاره اواروي. ځکه هغوی زموږ په خاوره کې ګڼ شمېر سیاسي، اقتصادي، نظامي او فرهنګي موخې تعقیبوي. ترڅو زموږ اسلامي هویت مسخ کړي او په راتلونکي کې د اسلام پر بنسټ د خپل برخلیک له ټاکلو څخه عاجز او لاس په سر شو. ځکه د هغوی له قوله؛ دغه هوکړه لیک یو داسې رسمي چوکاټ دی، چې د افغانستان او اروپايي اتحادیې ترمنځ د مرستو مدیریت کوي.

# امریکا

## د افغانستان د ساتنې ذمه واري نه لري

قدرت الله

له نن څخه ۱۴ کاله مخکې چې کله امریکې په افغانستان برید کاوو، افغانستان ته خیالي ژمنې ورکول کیدې زه په یو سیاسي میز کې میلمه ووم نو ما ان هغه وخت د روان فلم د سناریو وروستۍ خبره وکړه او وروستۍ خبره یې دا وه چې امریکا به یو وخت په شاه کیږي او بیا به وایي چې په موږ یې څه افغانستان پوی شه او افغانان پوی شه.

نن داده کټ مټ همدا خبره د امریکې د بهرنیو چارو وزیر وکړه، زه هغه وخت افراطي وبلل شوم، ان تر دې چې ځینو تر نن پورې راسره مړی ژوندی بند کړ او ډیرو راته سیاسي طالب وایه خو زه نه سیاسي طالب ووم، خو هرڅه له پاک زړه او د افغاني ټولنې شته دردونو ته په کتو سره خپل نظر ورکوم، په خپه ملګرو کې مې ځینې په فیسوک کې راسره دي خدای شته خبر مې کټ مټ ورته واستاوو ما ویل راځه که نور نه شي را پخلا خو به شي.

د امریکې د بهرنیو چارو وزارت مرستیال انتوني بلنکین ویلي دي چې دوی د افغانستان ذمه واری نه لري:« امریکې په افغانستان کې د کورنۍ نښتې له پیل کیدو مخنیوی وکړ او له یو ولسمشر څخه بل ولسمشر ته یې د واک په سوله ایز لیږد کې مرسته وکړه. واشنګټن خپلې ژمنې نه دي هیرې کړې خو تر ابده د افغانستان امنیت هم نه شي ساتلی. افغان سرتیري د نړۍ والې ټولنې په مرسته مسولیت لری څو بشپړ امنیت مسولیت واخلی او په اوږد مهال کې د خپل هیواد امنیت وساتي«.

ددې سرې له خبرو سره په ۲۰۰۱ کال کې د جورج ډبلیو بوش هغه افغانستان به سویس شي خبره را یاده شوه، خدای شته په ۲۰۰۱ کال کې چې کله پر افغانستان برید کیده د وحشت او استعمار تر څنګ ځینو خیالي خوبونه لیدل او ویل به یې ډیر ژر به افغانستان د سیالانو سیال شي، اردو به ولرو، ټاکنې به وشي، اداري به پیاوړې شي، ژوند به ښه شي، اقتصاد به ښه شي، خو دا هرڅه نه یوازې ښه نه شول بلکه ډیر افغانان مفت خواره هم شول افغانستان د ډیرو هیوادونو د نیابتي جګړې ډګر شو.

په افغانستان کې د هند او پاکستان، سعودي او ایران، روسیې، چین، امریکې او نورو هیوادونو سیالي نوې خبره نه ده دا نن چې موږ له رواني او فکري جګړې سره مخ یو ستر لامل یې په خبله امریکا ده او امریکا چې نن ذمه واری نه اخلي نو دا پلان دوی ان په ۲۰۰۱ کال کې درلود، ځکه زبرځواک کله هم د خپل تیري په اړه وضاحت نه ورکوي، که نن هم له روسانو سره کینې چې ولې مو په افغانستان تیری وکړ؟ دوی شونې ده تر سهوې یې د معقولیت هڅه ډیره وکړي، او دا د زبرځواک لپاره اصل دی او امریکا هم پرې باور لري.

خو دلته ځینې نـور ډنـډورچیان هم شته دي چې دوی هم مسلې کـوي او هم حملې پـه افغانسـتان کـې دا د مسلو او حملو کار یوناما کوي، امریکا چې هره خبره کوی نو په سـوژه کـې یوناما ورسره ګډه وي خو کله کله چې د دوی پر ضد نظر ورکوي نو دې کې د امریکې د پروژو دوام ویني، امریکا ډیر ښه لوبغالی دی هم لوبـه کـوي، یـانې وهـي او هـم دې اوښـکې در پاکوي.

یوناما ویلي دي چې امریکـا نـه شایي دا کار وکړي بلکـه بایـد خپـل شتون تـه زور ورکـړي د افغانسـتان لپاره د ملګرو ملتونو ځانګړی استازي نیکولاس هایسم ویلي دي :«نړۍ واله ټولنــه نــه ښــایي پــه افغانســتان سترګې پټې کړي دا هیواد لا هـم لـه ستونزو سره مخ دی او حل یې وخـت ته اړتیا لري. که افغانستان هیر شي دا هیواد به له ستر ناورین سره مخ شي. په هره برخه کې ناکامي کولای شي د امنیتی چارو سوله ایز لیږد له ستونزو سره مخ کړي«.

تر اوسه هـم زه والله پـه ځینـو مسایلو کې یو ډول شک یم، یو وخـت له امریکې سره تړون د دوی په کـور یانې سفارت کـې لاسـلیک شـو ویـل کیـدل نـور بـه دوی د افغـان اردو، پولیسو او نـورو د معـاش، وسـلو او نورو غم خوري خو نن وینـو چـې دا کیسه بل ډول شوې، ان تر دې چې په ارګ کې هم معاشونه نشـته دي، اردو تیل نه لري، الوتکې نه لـري، پـولیس معاش نه لري تیل نه لري، دا ټول هغه څه دي چې باید یادونه یې وشي.

امریکې چې په افغانستان کې په تیرو ۱۳ کلونو کې چې په افغانسـتان کې یې هرڅه کړي دي نـو یـوازې او یـوازې بـه څـو خـړو جوالونـو او د ملیاردونو ډالرو په بیځایه لګښت یې خلاصه کولای شو او دا احسان کله هم دوی په افغانانو نه شي کولای، سیګار چې تر اوسه څومره راپورنـه خپـاره کړي دي په ملیونونو ډالر که افغانانو لـوټلي دي نـو پـه ملیـاردونو نـور امریکـایي جنرالانـو او قراردادیـانو لوټلي دي.

د نن ورځې دوه ټکر خبرې ددې ښودنه کوي چې ملګری ملتونه لا هـم پـه سـیمه کـې د امریکـې پـروژې تضمینوي دوی اوس هم په سیمه کې د امریکې پروژو ته لابي کوي دوی لا هم په دې فکر کې دي چې څه ډول به دوی خپلو موخو ته ورسیږي د ملګرو ملتونو خبره د سپینې مانۍ خبره ده، ملګری ملتونه هغـه څـه کـوي چـې سپینه مانۍ یې وایي.

د شک خبرو په دې ګـرم بـازار کې له دې خبرې خبریدل اړین دي، په دې برخه کط شننې او نظریـات هـم بایـد ژور وي ښـه بـه وي چـې دزبرځـواک مـوخې او پـروژې ښـې تحلیل کړو که چـیرې هرڅـه تـه سر سري او ماذې وګورو نـو پـایلې یـې زموږ هیواد ته ښې نه دي افغانسـتان ته پـه کـار دي چـې د امریکایـانو دا خبرې جدي ونیسي او نور ملـت ونـه غولوي ځکه د ملـت غولـول د ملـت د تباهی لامل کیږی امریکا چـې کومـه روانی جګړه کوی دا یې په نـړۍ کـې کړې او نور ترې خلاص شوي دی خو موږ اوس هم خیـال وینـو او داسـې انګیرو چې هرڅه به سم شي خو ګمان مې نه شي چې دا وړۍ شـړۍ شي او داعشي معما به د یوې بې پایه کیسـې بله برخه پیل کړي.



# د اسلامي امارت اهمیت

لیکوال: قاري محمود غزنوي

په مسلمانانو د امیر او امام ټاکل واجب دی، د خپل بیعت په ذریعه به له امام سره ژمنه د خپل کامل اطاعت او فرمانبرداري په زحمت او راحت کې کوي، په خپل بیعت به وفا کوي، او بیعت به نه ماتوي.

په دې مختصر مضمون کې هڅه کوو، چې د شریعت په رڼا کې د امام ضرورت، د بیعت اهمیت، د خلیفه، امام او امیر منځ کې توپیر، د یو امیر په مقابله کې د بل پورته کیدل،د بیعت د ماتولو گناه، او د ځان ځاني وبال تشریح کړو.

نن سبا ځیني خلک په خپل طبعیت په شرعي لحاظ د خلافت، امامت او امارت مرادف الفاظ د جدا جدا معناگانو لپاره کاروي، او د دې الفاظو په منځ کې یې یو قسم درجه بندي کړې ده، خو شرعاً دا درې واړه الفاظ مرادف الفاظ او په یو ځانگړي شرعي حکومت او امارت دلالت کوي. الخلافة نومې کتاب چې په څلورمه هجري کې لیکل شوی، داسې یې تشریح کوي.

**التعریف بالخلافة: الخلافة ، والإمامة العظمى ، وإمارة المؤمنین ، ثلاث كلمات معناها واحد ، وهو رئاسة الحكومة الإسلامیة الجامعة لمصالح الدین والدنیا**

تشریح: یعني خلافت، لوی امامت او د مؤمنانو امارت درې کلمې دي، خو معنا یې یوه ده، چې د یو اسلامي حکومت ریاست او نظام ته وایي ((او چلونکي ته یې خلیفه، امام او امیر ویلی کیږي)).

## د امیر د ټاکلو اهمیت:

په دې کې شک نشته چې ټول امت، اهل السنة والجماعة او نوري اکثر طائفې په دې خبره متفق دی، چې د امام تعینول په مسلمانانو د گڼو دلائلو له مخې واجب دی، لومړی: اجماع یعني د صحابه کرامو اجماع په دې خبره راغلی چې د امیر تعینول واجب دي، له همدې امله دوی د امارت مسئله د رسول الله صلی الله علیه وسلم له دفنولو څخه مخکې کړه. دوهم: له امارت څخه پرته گڼ شرعي احکام نه تطبیق کیږي، لکه اقامة د حدودو، د غلو او داړه مارانو مخنیوی او گڼ نور چې د نظام تر حفاظت پورې تعلق لري. دریم: د دې په ذریعه د مسلمانانو له حسابه زیاتې گټې تر لاسه کیدل او د ضررونو دفع کیدل دي، او دا اجماعاً واجب دی. څلورم: په کتاب او سنة کې چې د امیر د اطاعت د وجوب حکم په کراتو مراتو راغلی، دا حکم د امیر د وجود د وجوب غوښتنه کوي.

**أجمع سلف الأمة ، وأهل السنة ، وجمهور الطوائف الأخرى على أن نصب الإمام – أي تولیته على الأمة – واجب على المسلمین**

## د بیعت اهمیت:

لکه څرنگه چې د امام تعینول واجب دی په همغه اندازه له امام سره بیعت کول ضروري دي، ځکه امام او بیعت سره لازم او ملزوم دي، نوکوم دلائل چې د امام

دنصب دي، همغه د بیعت د ضرورت دلائل هم دي. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

من مات ولیس في عنقه بیعة مات میتة جاهلیة ' رواه مسلم من حدیث لابن عمر مرفوعا وفیه قوله [صلی الله علیه وسلم] له' تلزم جماعة المسلمین وإمامهم '

همداسي لـه دې حدیث شریف څخه هم د امام وجوب ښکاره کیږي او دا چې له هغه سره بیعت وشي. ، څوک چې په داسي حال کې مړ شو، چې هغه له امیر سره بیعت نه وو کړی، هغه د جاهلیت په مړتوب مړ شو. بل ځای فرمایي: د مسلمانانو له ډلي او امام سره ملګری شه!

**د امیر اطاعت او په بیعت وفا کول:**

په اول قدم کې په ټولو مسلمانانو واجبه ده، چې له امام سره بیعت وکړي، لکه څرنګه چې مخکې حدیث شریف نه جوتیږي، په دوهم قدم کې په مسلمانانو واجبه ده، چې په خپل بیعت وفا وکړي، د امیر اطاعت او فرمانبرداري د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پوري او یا تر هغه مهال پوري ، تر څو ورته په معصیت امر ونکړي. په دې اړه ګڼ آیاتونه او احادیث راغلي چې د امیر اطاعت لازم دی، د هغه د حکم نه سرغړونه غټ جرم او لویه ګناه ده، اګر که د هغه له خوا نه تاته صدمه او تکلیف رسیږي، بیا هم صبر کوه، او د هغه په خلاف د خروج اجازه نشته،

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: " ان استعمل علیکم عبد حبشي ، ما قادکم بکتاب الله عز وجل ، فاسمعوا له وأطیعوا "

عن ابن عمر ، أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال : " السمع والطاعة علی المرء المسلم فیما أحب وکره ، إلا أن یؤمر بمعصیة فإذا أمر بمعصیة ، فلا سمع ولا طاعة "

عن ابن عباس ، عن النبي صلی الله علیه وسلم : " من رأی من أمیره شیئا یکرهه فلیصبر ، فإنه لیس من أحد یفارق الجماعة قید شبر فیموت إلا مات میتة جاهلیة "

د امیر اطاعت پکار دی، اګر که هغه تک تور حبشي ولي نه وي، او له امیر څخه د یوې لویشتي لري کیدا د دنیا او د آخرت په تاوان تمامیږي او دا چې له هغه سره په بیعت باندي پوره وفا وشي، او دا چې له بیعت څخه لوبه جوړه نشي، چې نن له یوه سره بیعت وکړي، سبا له بل امیر سره.

وفي حدیث أبي هریرة عن النبي صلی الله علیه وسلم : " فوا ببیعة الأول فالأول "

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: تاسو په خپل بیعت په خپل ترتیب سره وفا وکړي.

عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم قَالَ : كَانَ بَنُو إِسْرَائِيلَ تَسُوسُهُمُ الأَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهُ نَبِيٌّ ، وَإِنَّهُ لا نَبِيَّ بَعْدِي ، وَسَيَكُونُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُونَ ، قَالُوا : فَمَا تَأْمُرُنَا ؟ قَالَ : فُوا بِبَيْعَةِ الأَوَّلِ فَالأَوَّلِ ، أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ ، فَإِنَّ اللَّهَ سَائِلُهُمْ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ.

**د امیرانو کثرت:**

که چیرته په کومه سیمه کې د مسلمانانو دوه یا ګڼ امیران وو، او له هریوه سره په کثیر تعداد سره کسانو بیعت کړی وو، حق د اولیت هم چاته نشوای ورکول کیدای، په شرعي صفاتو کې یې هم فرق نه وو، هریو سلطه هم درلوده، نو په داسي وخت کې که دوی له یو بل

سره په جګړه شوو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دا وخت د فتنې ګڼلی دی.

وأما الحالة الثانية: حيث يفترق الناس على إمامين، ويكثر العدد في كل فريق من الجهتين، ويُشْكَل الأمر، ويجلّ الخطب، فذلك حين قبح الفتن؛ فالواجب عند ذلك الكفُّ، والتوقف عن كل فريق، وطَلَبُ السلامة لدينه، بالاعتزال والفرار عن الفتنة، خرَّج مسلم عن أبي بَكْرَة: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: «إذا تواجه المسلمان بسيفيهما؛ فالقاتل والمقتول في النار»، قال: فقلت -أو قيل-: يا رسول الله، هذا القاتل، فما بال المقتول؟ قال: «إنه قد أراد قتل صاحبه».

نو په داسي وخت کې ځان ساتنه او بې طرفه پاتې کیدل پکار دي، له هیڅ فریق سره ملګري پکار نه ده، د خپل دین او اسلام د ساتنې لپاره به له فتنې نه چیرته لرې تښتي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: کله چې دوه مسلمانان په یو بل توره پورته کړي، نو قاتل او مقتول به دواړه په اور کې وي، راوي وایې ما تري پوښتنه وکړه، چې یا رسول الله! قاتل خو صحیح ده، نو د مقتول څه ګناه ده؟ هغه (ص) وفرمایل: هغه هم د خپل مقابل د قتل اراده کړي وه.

**د امارت په موجودیت کې له بل سره بیعت کول:**

که په یوه سیمه کې امارت یا خلافت له پخوانه موجود پاتې وي، مسلمانانو ورسره بیعت کړی وي، بیا وروسته بل کس را پاڅیږي او د امارت یا خلافت دعوه وکړي، یا د بل امیر یا خلیفه لپاره بیعت وکړي، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې اړوند غوڅه خبره کړې ده، چې دوهم امیر یا خلیفه دي ووژل شي،



عَنْ أَبِى سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- :« إِذَا بُويِعَ لِخَلِيفَتَيْنِ فَاقْتُلُوا الآخَرَ مِنْهُمَا ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِى الصَّحِيحِ عَنْ وَهْبِ بْنِ بَقِيَّةَ.« إذا بويع لرجلين فاقتلوا الآخر منهما »

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: کله چې د دوه خلیفګانو (دوه کسانو) سره بیعت تر سره شي، نو دوهم یې ووژنئ. دا حدیث ګڼو محدثینو روایت کړی دی.

قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم -: مَنْ جَاءَ إِلَى أُمَّتِي وَهُمْ جَمِيعٌ، فَأَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَهُمْ، فَاقْتُلُوهُ، وَقَالَ مَرَّةً: فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ.

عن عبدالله بن عمرو بن العاص قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «... ومن بايع إماماً، فأعطاه صفقة يده، وثمرة قلبه، فليطعه إن استطاع، فإذا جاء آخر فنازعه؛ فاضربوا عنق الآخر».

عن النبي صلى الله عليه وسلم يقول (إنها ستكون هنات وهنات فمن أراد أن يفرق أمر هذه الأمة وهم جميع فاضربوا رأسه بالسيف كائنا من كان )

همداسې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: کله چې څوک زما امت ته په داسې حال کې راشي چې

هغوی متفق او متحد وي،له يو امير سره يې بيعت کړی وي، خو دا کس اراده وکړي، په خپله د امارت دعوه وکړي، يا له بل کس سره خپل بيعت اعلان کړي، تر څو د پخواني امير اتحاد ګډوډ کړي، نزاع را منځته کړي، اختلاف پکښې پيدا کړي، نو تاسو دا کس ووژنئ، راوي مرة وايي: په توره يې ووهئ. تر څو فتنه ختمه شي.

**وقال عمر حين قالت الأنصار: "منا أمير ، ومنكم أمير : سيفان في غمد واحد اذا لا يصلحان"بيهقي**

کله چې حضرت عمر رض ته انصارو وويل: يو امير به له مونږه وي، بل له تاسو، نو هغه داسې ځواب ورکړو: په يو تيکي کې دوه توري نه ځايېږي.

**عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «مَن خرج من الطاعة، وفارق الجماعة، ثم مات؛ مات ميتةً جاهلية، ومن قتل تحت راية عمية، يغضب للعصبة، ويقاتل للعصبة؛ فليس من أمتي، ومن خرج من أمتي على أمتي، يضرب بَرَّها وفاجرها، لا يتحاشى من مؤمنها، ولا يفي لذي عهدها؛ فليس منِّي».**

**قوله: «تحت راية عميَّة»، أي: فتنة وجهالة، كأنه مأخوذ من العمى، قال في «مختصر العين»(٥): العُمِّيَّة والعِمِّيَّة: الضلالة، يقال: قتل فلان عمِّياً، وهي فَعيلةٌ وفِعلى: من العمى.**

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: څوک چې د امير له اطاعته ځان وباسي يعني بيعت مات کړي، جماعة پريږدي، بيا وروسته مړ شو، نو دا کس د جهالت په مرګ مړ شو او څوک چې د ضلالت او ګمراهۍ لپاره جنګ کوي، او څوک چې د خپلوي تر بيرغ لاندې جنګيږي، هغه زما له امته نه دی، او چاچي زما له امت نه زما په امتيانو توره را وايستله، چې نيکان او بدان يې دواړه وهل، نه يې له مؤمن نه حيا کوله، نه يې له څښتن د عهد سره وفا کوله، دا زما نه نه دی.(يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم ترينه بيزاره دی).

* * *

## د وخت ارزښت دعلماؤ سره

علامه عبدالغني مقدسی رحمه الله، د شپږمې پيړۍ ستر محدث او فقيه وو، د هغه د نظام الاوقات په اړه ده هغه شاګرد ضياء الدين مقدسی وايي:

(علامه مقدسي رحمه الله، د ژوند يوه لحظه هم ضائع نه کړه، د سهار له لمانځه فورا ورسته به يې تلاوت کاوه، د حديث درس به يې شروع کړ، اودس به يې وکړ او تر ماپښين پورې به يې ۳۰۰ رکاته لمونځ وکړ، ورروسته به يې لږ ارام وکړ، تر ماښامه به يې د تصنيف کار کاوه، له ماښام ورسته که به يې روژه وه نو روژه مات به يې وکړ کنه تر ماخوستن پورې به په لمانځه مصروف وو، د شپې تر نيمايي به يې ارام وکړ، او بيا به يې اودس تازه کړ په لمانځه به ودريدي تر څو به سهار سپيدې وچاودې، ډير ځله خو يې اوه ـ اوه کرته اودس تازه کاوه، ويل به يې: کله چې زما اندامونه د اوداسه په اوبو لانده وي، نو ډير خوند ځينې اخلم....!!

[تذکرة الحفاظ]

ملا خبیر احمد مجاهد

## دمیړانې،شجاعت اوروحانیت دنګ منار،

# شهید (مولوي میراحمد ګل) هاشمي

## ته دعقیدت نذراني!!

خاونده ټوله مې ترې زار کړې
په خوږ اسلام یې غرغرې منلې دینه

شهید مولوي میر احمدګل هاشمي رحمه الله، داسلام ، جهاد اوغیرتمن ټاټوبي افغانستان ، ددفاع هغه فولادي سپراوتیره توره وه، چې زه هیڅ داسې عبارات اوټکي په ذهن کې نه لرم اونه یې تمثیلولی شم ، ترڅو دهغه دپرافتخاره ژوند ، سرشاره دیني اوجهادي خدمتونو اوځلانده قربانیوکماحقه حق پرې اداکړل شي .

ځکه دشهید مولوي میراحمدګل هاشمي ، ژوند ،جهادونه ، طالبي ، فراغت ، پوهه اوتدبیر اوبالاخره شهادت ، که هره برخه یې راوسپړل شي ، دوفا، دیانت ، اطاعت ، متانت اواسلامي غرور منارونه پکې دنګ اوله ورایه ځلیږي.

زه پورته کرښې لدې امله په جرائت کوم ، چې ماته دشهید دژوند قیمتي شیبې اوکارنامي یوه یوه مخې ته ولاړې اوځلاند ستوري دي اوترډیره ځایه ترې اګاهي لرم ، ځکه څوکاله سره یوځای په طالبي اوکتابونوکې شریک اوهمدوره وو ،بیا الله تعالی هغه ته دخاص جهادي اوسیاسي فراست له مخې چې پرې لورولی یې وو، هغه مودجهاداومبارزې مشرهم پاتې شو.

دغیرتمن میرصاحب ، سیاسي اوجهادي ژوند ټول له غیرت اومیړانې ، اطاعت او زغم څخه ډک وو ، دافغانستان اسلامي امارت څخه وړاندې چې کله دافغانستان دهرولایت لپاره داهل سنت والجماعت اتحادیی تاسیس شوي وې، میرصاحب دلوګر ولایت په منظمه کې دخدمت ممتاز حیثیت درلود ، داسلامي امارت د طلوع ، حاکمیت اودامریکایانو داشغال په اوږدو کې بیا دشهادت تر نیټې پورې ، مجاهد میرصاحب په داسې حال کې چې بیلابیلې دندې اومهم مسؤلیتونه یې ترسره کړي اویاورله غاړې وو اوهم یې په دغه مقدسه لارکې دتکالیفو، زخمونه، زندانونو ډول ډول مرحلې تیرې کړي وي ، متعال رب جل جلاله ، په ټولو دورو اوپړاوونو کې سرفرازه راویستلی.

**میر احمدګل هاشمي څوک وو :**

شهید مولوي میراحمدګل هاشمي ، دمرحوم میرعبدالله ځوی ، په څېړ ( سید ) ۴۲ کاله وړاندې چې د (۱۳۵۲ ) لمریز کال سره یې سمون لاره ، دلوګر ولایت دمرکز اړوند( دپادخواب شانه ) کلي کې دې فاني دنیاته سترګې غړولې ، والد محترم او نیکونه یې روحاني هستی اوددعابزرګواره مراجع تیرې شوي، چې په عام ولس اوخواصوکې یې ځانګړی ځای اومقام درلود .

**درس اوطالبي :**

دطالبی دوراوبیا فراغـت یـې ټـول لـه خاکسـاری ،ادب اوالفت څخه ډک وو ، پـه داسـې حـال کـې چـې پـه خپـل وخت کې له ممتازو اوذهینوطالبانو څخه ګڼل کیـده اوچـې کـوم کتابونـه بـه یـې لـه اسـتادانو ویـل ، الله تعـالی دهغودبلفعله تدریس قوه اوپوهه هم ورکړې وه ،

شـهید میرصـاحب پـه خپـل قلـم لیکـل شـوو سـوانحواوخاطروکې راوړي ، چـې ړومبنـی زدکـړې یـې لـه خپل مشر ورور څخه ترلاسـه کـړي ، منځنـی زدکـړي یـې دپاکسـتان پـه بیلابیلـو دینـي مدرسـو کـې حاصـلې کـړي اودفضیلت اوفراغت دسـتار یـې داکـوړه خټـک پـه حقانیـه دارالعلوم کې په سرکړ .

دالله ددیـن دغـه نومیـالی سـپاهي ، چـې لـه یـوې بزرګوارې روحـاني کـورنی سره تعلـق لاره ، خـو دخپـل ټـول عمر په اوږدو کې شاید چا نه وي ترې اوریدلي اوياېي نـه وي ترینه محسوس کړي ، چې (زه سید، هاشـمي اودلـوړې علمـي اوروحـاني مرتبـي څښـتن یـم ، یعنـي زمـا درنـاوی اواحترام دې وشي)

دهراسـتاد لاس بـه یـې ښـکلاوه ، سره لـدې چـې استادانوبه ورته ویل چې ګوره ، ته سید یـې زمـونږ لاس مـه ښکلوه ، خو دمیراحمد، هاشمي ، خپـل شرافـت اوکـمال وو چـې دژوندترپایـه الله تعـالی پـه همدغـه ادب او عقیـدت سیرابه وساته اودوام یې ورکړ.

دشهید میرصاحب یوتن مشفق اسـتاد، شـیخ القـران والحـدیث مولانامحمداسـماعیل رحـماني وایـي : مولـوي میراحمدګل هاشمي ، چې ګڼ کتابونه یې له هغه لوسـتي ،په دې سربیره چې دښه ذهانت څښتن وو ، کلکه مطالعـه به یې کوله ، وخت یې هیڅکله نـه ضـایع کـاوه ، لـه کتـاب ، مـدرسي اواسـتادانوسره بـه یـې انتهـایي مینـه اومحبـت درلود دهغوئ احترام به یې کاوه .

کله ناکله به ملګرو ورته ویل چې میرصـاحب تـه خـو( سید ) هم یې یوتعویذ راته وکړه اویامو سر دم کـړه ، هغـه بـه تبسم وکړ چـې هرسـه مـې زده اوپخـې اجـازې لـرم اوداللّٰه تعالی په فضل اثر هـم کـوي ، ولـې پـه دې میدان کـې ډیـر خلـک شـته ، هغـوی بـس دي ، ځکـه داکـارلویي جانـداری غواړي ، اوتقاضاوي ورسره زیاتیږي ، مثلا له خلکو به توقـع کوي چې ستااحترام دي وکړي اولاسونه دې چـپ کـړي اوماته لدغه کاره سخته حیا رازي !! .

**دمیرصاحب جهادي اوسیاسي اړخ :**

مرحـوم میرصـاحب ، دطـالبی پـه مهـال چـې تانـده ځواني یې وه ، پـه درس ویلـوسربیره یـې لـه جهـاد اوعمـلي مبـارزې سره خاصـه علاقـه درلـوده ، ددرسـونو دکلنیـو رخصـتیودری میاشـتې بـه یـې لـه نـورو ملګـروسره دروسانواودهغوی دګوډاګیانوپه خلاف په جهادکې تیـرولي ، داهل سـنت والجماعـت پـه ولایتـي اتحادیـه کـې یـې مهم غړیتـوب درلـود ، دنومـوړې منظمـي لـه لارې بـه دمسلمانانوترمنځ داصلاح ، وحـدت اودمنکراتـو دمخنیـوي لپاره چټکي هلې ځلې کولې ، کله چې پـه ۱۹۹۴ م کـال کـې دافغانستان دنجـات پـه هیلـه اوپـه هیـوادکې دیـوه اسـلامي نظام دنفاذ پـه خـاطر دعالیقـدرامیرالمؤمنین ملامحمـدعمر مجاهد ترمشری لاندې دطالبانواسلامي تحریـک پیـل شـو ، جناب میرصاحب دیوه مخلص سپاهي اوغړي په توګه ډګر ته راودانګل .

دشهید میرصاحب دسنګر یو نیږدې ملګـری ، مولـوي نذیراحمـد اخنـدزاده، دطالبـانو دتحریـک دپیـل شـیبې اودمیرصـاحب اخـلاص داسـې پـه ګوتـه کـوي : غالباًدپنجشنبې ورځ دتحریک دطلوع تازه شپې ورځـې وې ، مازدیګرمهال میرصاحب زموږمدرسي ته راغی دغـه وخـت موږدسرحدورسک روږشیردادګړی په دارالعلـوم ضیاالاسـلام کې دیره وو

دمدرسی انګرته له ننوتوسره سم يې ماته وويل دمدرسې تول مشران طالبان جومات ته راغونډکړه ، ډيرمهم اوپه زړه پورې خبرمې راوړې پخپله يې په اوداسه شروع وکړه کله چې طالبان جومات ته راغونډشول هغوی ته دميرصاحب دخبرومهم ټکی دری ؤ

اول. دميډياتبصرواودخبريالانوپه راپورنوپسې سرمه ګرځوی ننني ميډيا دغرب دلوډ سپکرحيثيت لري ، زماخبره واوری په يقين درته ويلاسم چې په کندهار کې دطالبانو کوم حرکت پيل شوی ،داخلک په رښتياواقعی طالبان دي، موږيې په هکله مکمل معلومات وکړل داددينې مدرسوشاګردان دي ، هيواد له تجزيی ژغوري ،دافغانستان حال ډيرخراب دی خپل منځي جګړو افغانستان نور لولپه کړ، اسلامي شرايع اواحکام توهين لاندې دي دخلکوسراومال په خطرکی ده ، نولازمه ده چه ځومره زروی ملاوی وتړی جهادته ولاړسی دوهم ..دهرولايت طالبان دی ځان دپاره يونظامی مسؤل وټاکی اوسرله صبادی ددغه مسؤل ترمشری لاندې افغانستان ته حرکت وکړی دريم..له کوموملګروسره چې دکرايی پيسی نوی هغوی دی يوځه معطل وکړي له يوشميرخواخوږومسلمانانوځه دی دجهادپه نوم چنده وکړی بيادی ولاړسی.

داسلام اوجهاد دلارې دغه اتل ،دهيواد په بيلابيلو جبهواوړومبيو جهادي کرښو کې دخپلولسګونو فداکارو ملګروسره مخامخ دمعرکي ميدان ته دانګل اوپه اکثروړومبی مهمه کرښوکې چې دښمن به ورته ډير تدابير نيولی وو ، ميرصاحب به يې په ساتنه او په دښمن په فاتحانه بريدونو کې کليدي رول لوباوو .

دبيلګې په توګه دکابل دفتحې تاريخي جګړه يادوو چې دشهيد ملابورجان رح ترمشری لاندې يې دپکتيا دځينوسيمو له تصفيي ځخه پيل ، دمشرقي ترفتحې اوبيادکابل ترځنډو پورې وغځيده ، په دغو ټولوفتوحاتوکې ميرصاحب لويي ستړياوي ګاللې اودميرانې حيرانونکي داستانونه لري ، تردې چې دملابورجان دشهادت په ورځ ، ميرصاحب هم په مخامخ توده جګړه کې کلک زخمي شو.

دغه ډول ميرصاحب دتخاردبنګي په ړومبی کرښه کې ، دلغمان په دولت شاه ، دلوګر په پل قندهاري ،دکاپيسا په تګاب ، نجراب اواله سای ولسواليو کې ، دشمالي په ګلدره ، شکردره ، چاريکارو ، پل متک اودبګرام دوه لاري په ړومبيو جګړييزو کرښوکې ،دغه راز د باميانوپه حاجي ګګ اودننګرهار اوکونړ په بيلابيلو برخوکې داسلامي امارت ديوزړور جهادي مشرپه توګه تل پاتي قهرماني اوميړاني شاته پريښودلې .

**صليبي يرغل اوميرصاحب :**

شهيدمولوي ميراحمدګل هاشمي ، په خپله يوه ليکل شوي مرکه دصليبي يرغل په وړاندې دخپل جهاد ، مبارزي پيل اوځرنګوالي په دې الفاظو روښانوي : کله چې اسلامي امارت په کال ۱۳۸۰ لمريزکې دصليبي يرغل له امله له ښارونو ځخه دهيواد لري پرتو اوقبايلي سيموته عقب نشيني وکړه ، نوملګري سره تيت اوپراګنده شول ، ترهغو چې ملګري بيرته سره منظميدل اورابطه ټينګيده ،نو يو ځو مياشتي يې واخيستي ، له لنډې وقفي ورسته موپه عملي جهاد پيل وکړ اودلوګر ولايت په ټولوساحو کې سره لدې چې حالات زيات پيچلي او حساس وو خو دملګرو همت اودعام ولس اخلاص وو په يرغلګرو خال خال بريدونه پيل شول ، مجاهدينوپه لوګر کې په داسې شرايطو کې په مکار نړيوال دښمن بريدونه پيل کړل ، چې دهغوی شيطاني ميډياپه مسلسل ډول داتبليغات کول چې په امريکايي اوخارجي وسايطو اوټانګونو يو شی هم کار نکوي ، بلکې خنثی کوي يي ، همدارنګه داتبليغات هم په درز روان وو چې ځوک امريکايي اډو ته ورنيږدې شي اودبريد هځه وکړي ، هغوی يې په ځو کلومتري کې ويني اوهم له هواځخه B

۵۲امریکایی الوتکي دځمکي په سر یو یادوه اینچه ځیز تشخیصولی او ترهدف لاندې نیولی شي ،خو باور وکړي چې مونږ ته دغه غلیمانه تبلیغات یو یو دروغ ثابت شول .

د لوگر ولایت یو تن پیژندل شوی مجاهد چې اوس د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د غزني ولایت جهادي مسؤل دی مولوي محمد قاسم صمیم وایي:په کال ۱۳۸۰ هـ ش کې چې د صلیبیانو د یرغل شپږ میاشتې وتلې وې،میرصاحب په لوگر کې زموږ کور ته راغی چې د څرخ ولسوالۍ احمدي صاحب هم ورسره و،میرصاحب راته وویل چې باید د صلیبي یرغلگرو په خلاف جهاد پیل کړو،ما ورته وویل چې لږ انتظار به وکړو تر څو وضعیت روښانه شي،خو میرصاحب وویل چې انتظار کول گناه ده ،جهاد فرض عین دی او باید د خپل وس مطابق جهادي ترتیب جوړ کړو،هماغه و چې د احمدي صاحب او د څرخ ولسوالۍ د شهید مولوي محمد صاحب په همکارۍ مو یو میل راکټ او دوه کلاشینکوف پیدا کړل،په لومړي ځل مو د څرخ ولسوالۍ په عمومي سرک د شپې په یوه بجه ددښمن گزمې ته کمین ونیو،کله چې د دښمن د گزمې موټر راغلل،میرصاحب د تکبیر له غږ سره د راکټ فیر ورباندې وکړ چې د یرغلگرو و جیپ موټر مکمل تخریب شو،له دې وروسته مو په برکي برک او د مرکز پل عالم په مربوطاتو کې هم د انفجاراتو او هاوان بریدونو عملیات ترسره کړل چې په دې توگه دمیرصاحب په هڅو په لوگر ولایت کې جهادي بهیر راژوندی شو .

د جهاد دپیل د لومړنیو ځینو عملیاتو په اړه میرصاحب په خپلې یوې مرکې کې ویلي : د۱۳۸۱کال دثور په میاشت کې مو دلوگر دتنگي واغجان په سیمه کې په ړومبي ځل دخارجیانو په کتار یوه کارنده بمي چاودنه ترسره کړه چې څو عرادي موټریې له منځه ولاړل اوگڼ اشغالگر پکې مړه اوټپیان شول ، هغه بم مجاهدینوپه خپله جوړ اوریموږ یې ما د( کارلس ) ټلیفون نه برابرکړ ،ماهلته ملگرو ته وویل چې ومولیدل دامریکا شاخ لرونکي درواغ ، څنگه دطالب بم اوریموږ پرې خوله خښه کړه اودهغوی ټول تدابیر یې بې معنا وگرځول ، دغه راز یوه شپه زه سره له څوتنو ملگرو، دپادخواب شانه اوابچکان په دښته کې دامریکایانوقوي کمپاین ته نیږدې دتوغندي توغولو لپاره ورغلو ، دشپې یوه بجه وه ، مونږ په توغندي لگیاوو چې امریکایی څرخکه زمونږ په سر تیره شوه په کمپاین یې دوري وکړي ، ماته شهیدخان محمد اوشهید طالب وویل چې میرصاحب څرخکي ولیدلواوبیرته رابانـدي راگرځي ، ماورته وویل چې څرخکه په کمپاین گرځي اوخپله گزمه کوي ورخطاکیږی مه ، هماغسي وشول څرخکي څو دوري په کمپاین وکړي اوبیا دگردیزپه طرف ولاړه ، بیا موڅوتوغندي په کمپاین ور وتوغول اودرون زیان یې ورواړاوه .

میرصاحب و یلي ، په همغه ساعت کې مې ملگرو ته وویل، چې دالله تعالی په فضل سره دامریکایانو بل دروغ هم راته ثابت شو اووموولیدل چې دکمپاین په څو سوه متري کې یې هم مونږ تشخیص نشو کړه لای

میرصاحب لیکلي: بیا مونږ اومجاهدین ټول له یوې نه بلې ورځي ته داړه کیدلو اومورال مو اوچتیده ، په هرځای کې پریکنده عملیات او گوزارونو په دښمن شروع شول .

**مسؤلیتونه :**

په دې سربیره چې شهید میرصاحب دلوگر دطالبانو اومجاهدینو یونومیالی مشرـ اوسوونه سربکفه مجاهدین یی لرل ، دامارت په لیکو کې یې ددې پروا نه ساتله چې لوړ ه څوکی ورته ورکړل شوي ، که ټیټه ، داطاعت اوخدمت جذبه یې په رگونو کې همیشه په غورځنگووه ، کله چې دطالبانو اسلامي تحریک لویی پکتیا ته ورسید، دسیدکرم ولسوالی چې یوه ناامنه سیمه وه اوان دپکتیا مرکز گردیز ته به ترې امنیتي گواښونه متوجه کیدل ، نومیرصاحب سره له سرسپارلو ملگرو هلته ولیږل شو، اودمشرانو له لوري په

دې نيت چې ميرصاحب ګڼ اووفاداره ملګري لرې اوخپله هغه نظامي تجربه اوزړورتيا لري نو دسيدکرم ولسوالی دامنيه قومندان په توګه وټاکل شو، يوه ملګري ترينه پوښتنه وکړه چې ميرصاحب په لسګونو تکړه مجاهدين اوملګري لري اولوړ نوم اوحيثيت دې دی ، ته ايله دسيدکرم ولسوالی امنيه قومندانی قبلوي ، بايد مشرانودرته دپکتيا ولايت درکړي وای، ميرصاحب ورته په خندا کې وويل چې مشرانو به لازمه بللي وي اوهمدومره استعداداووس به زمونږ ورته ښکاره شوي وي ، بله خبره داچې تحريک زمونږ خپل کور دی او داټولې چوکياني که لويي دي او که وړې ټولې زمونږ دي!! په همدې ډول داسلامي امارت دواکمنې په مهال چې اتل شهيد مولوی خوشحال ملنګ دکاپيساوالي اوشهيدمولوي محمدشريف سعيددولايت مرستيال وو ، ميرصاحب په نظامي دندې سربيره دولايت مستوفيت دنده هم په مخ وړله ،داراز دغزني دفرقې معاونيت ، اودننګرهار منتظره قطعي کې دځو سوو ملګرو په مشرۍ سربيره دچپرهارولسوال په توګه هم په خورا صداقت خدمتونونه اوجهادونه ترسره کړي

له صليبی يرغل ورسته مرحوم ميرصاحب ، دپنځو کلونو لپاره دلوګر دوالي په توګه دنده اوجهادي مسؤليت لاره اوپه ډيره ځيرکتيا او زړورتيا يې په دغه موده کې هلته دجهاد رهبري ترسره کړه ، دهغه ترڅنګ يې دنظامي عمومي کميسون غړيتوب هم لاره ، يوڅه موده دموسساتودعمومي کميسون مشرهم پاتي شو ، له هغه ورسته دوه ځله دننګرهار ولايت دوالي په توګه يې په خورا متانت او اخلاص سره دنده ترسره کړې ، د ننګرهار د والي په حيث د لومړي ځل وظيفې په مهال ميرصاحب ونيول شو او څو کاله يې سخت زندان تير کړ له راخلاصيدو وروسته ددوهم ځل لپاره دننګرهار والي شو چې دشهادت مرتبه هم په داسې حال کې چې دننګرهار والي وو ورته ورسيده.

### د ميرصاحب د ميړانې په زړه پورې واقعه

مولوي محمد قاسم صاحب چې د ميرصاحب د طالبۍ او د جهاددوخت نږدې ملګری پاته شوی دی وايي،چې د طالب العلمۍ په وخت کې ما له ميرصاحب سره يوځای د پيښور په بورډ سيمه کې په ضياء المدارس مدرسه کې له شيخ الحديث محمدنعيم اخندزاده صاحب سره درسونه ويل،د مدرسې له څنګ سره يو هوار ميدان و، په دې سيمه کې دننګرهارولايت يو ملک يا قومي مشر-هم اوسيده يوه شپه يې د زوی واده و او د سرود محفل ته يې سازنده او رقاصې راوستې وې، طالبانو د شپې کتابونه کتل خو د ساز اواز دومره جګ و چې موږ ترينه کتاب نه شوای لوستلای .

په دې وخت ميرصاحب راغی ما او نورو طالبانو ته يې وويل چې دا به ډيره کمزوري وي چې زموږ په څنګ کې دلته د ساز او ناروا اعمالو مجلس جوړ وي او موږ ورته هيڅ نه وايو ، راځئ چې په دې محفل بريد وکړو او دغه بدکاره خلک له دې سيمې وشړو .

ماورته وويل چې دا به څنګه امکان ولري ځکه دې خلکو د خپل سرود د مجلس امنيت نيولی او موږ تش لاس يو ، ميرصاحب وويل چې دمدرسې په انګړ کې پخې خښتې پرتې دي دا به راسره واخلو او حمله به پرې وکړو .

وروسته ميرصاحب ګڼ شمير طالبان رايوځای کړل ،د حملې ترتيب يې جوړ کړ او دشپې په يوه بجه يې د ساز په هغه محفل حمله وکړه چې امنيت يې مسلحو کسانو ساتلی و،دالله تعالی په نصرت ميرصاحب په خپل مخلصانه کار کې کامياب شو او هغه د ناروا اعمالو مجلس يې تارومار او عاملين يې له سيمې تيښتې ته مجبور کړ ل چې د دنوموړي د ميړانې او جرآتمندانه کردار يوه جالبه خاطره وه.

**دميرصاحب زغم اواستقامت :**

غښتلي ميرصاحب يواځې په عادي حالاتوکې دلوړې حوصلې ، تدبير اوزغم کمال اولوړ نوم نه درلود ،

بلکې له هرې سختی اومشکل حالت سره بـه هـم چـې مـخ شـو ، الله تعـالی یـې حوصـله ، صبر اواسـتقامت پرڅـای ساته اوپه دریځ اوموقف کې به یې تزلزل اوبې ځایه تغیـر نـه محسوسـیده ، همیشـه بـه یـي ملگـرو تـه دلـوړ مـورال خبري کولې ، دډار اووهم کیسي یې هیڅکله پـه خولـه نـه راتلې .

دامریکایانودیرغـل ړومبـی شـپي ورځـي وي ، یعنـي تقریبادری که څلور میاشتي بـه تیـرې شـوي وي ، اکـثره ملگري سره نادرکه اویوپه بل خبرنه وو ، دغلیم تبلیغات هم اوج تـه رسـیدلي وو ، زه ( قلمـوال ) هـم پـه کـور کـې غلـی اوسیدم اوډیر نه ښکاره کیدلم اوبـاور وکـړی ، یـو ډول ذهنـي تکلیف راته لویـدلی وو چـې دابـه سـه کیـږي ، یومـازدیگر یوتن مجاهد زمـونږ کورتـه راغـی چـې میرصـاحب راغلـی اوماښـام دلتـه راځـي ، مـونږ ددې انتظـار کـاوه چـې میرصاحب به په کومه لار راځي داسې نه چې څوک یې وویني ، ماښام چې کله تیاره شوه میرصاحب زمونږ دکور مخـامخ دغونـډی پـه سر راواوښـت ، اوپیـاده راروان وو ، پـه لیدویې که له یوې خوا لـه خوشـالی نـه پـه جـامو کـې نـه ځایدم ، خو لـه بلـې خـوا سـخت تشـویش راسره وو ، چـې تعقیب شوي نه وي ،ځکه امریکایي چورلکې هم مسلسلې گرځیدي ، ماورته وویل دغونډی شـاته خـو پـه یوکلـومتري کې دامریکایانو کمپـاین پـروت دی ، څنگـه راتیرشـوي ، پـه خنداشو چې همداسې په څنگ یې راغلو ، مطلب مـو داوه چې لږ یې اندازه هم راته معلومه شي ، ترڅـو دشـپي لـه پلوه پرې کله ناکله توغندي وتوغوو، بیا اتـل میرصـاحب دسـقوط دسـتومانه شـپو ورځـلـوی داسـتان بیـان کـړ، ورسره یې دمشرانو ځینـو ملگـرو دارتبـاط ذکروکـړ، همدغـه ډول یې دعملي جهاد عزم ښکاره کړ اودخپل راتگ موخـه یې همدغه وبلله ، بیا ترینـه مـا څـو پوښـتني وکـړي چـې میرصاحب څنگـه ممکنـه ده چـې پـه دغسي- حـالاتوکې چې څوک هغه دچا خـبره ، (پـر ) نشي- وهلـی وطـن تـول امریکایـانو او دهغـوی جاسوسـانو نیـولی ،دامریکایـانو امکانات وگوره اوتش لاسي مجاهدین!!!؟

پیـاوړي اوجوهرشـناس میرصـاحب ، زمـادمزاج برابردډاډ داسې یوڅو کیسي راته وکړي چې زما په رگونـو کې نوې وینه پیداکړه اوزما ذهن یـې دیتـه امـاده کـړچـې بیرتـه پـه عمـلي مبـازره پیـل وکـړو ، دمیرصـاحب دهغـه مجلس خلاصـه ټکي داوه ( زمـونږ اوسـتاسي داسـې یـوه داعیه ده ، چې ملت یې راسره تسلیموي ، ولس اوامت تـه مودغیرت امتحان ورکـړ، صرف یـو وهـم او رعـب ددښـمن پروت دی ، اوهغـه پـه دې لیـري کیـږي چـې مجاهـدین یوڅو عملیات ترسره کړي اودامریکایانو پلیدي ویني تـویی شي ، بیا الله تعالی مهربان دی ، کارونه سمیږي )

زما په فکر له همدې شپي ورسته ، میرصـاحب سره له نورو ملگرو، ړومبی دامریکایانو په لوی کمپاین (خـدر) بانـدي بریدونـه پیـل کـړل ، هـره شـپه بـه یـې پـرې دتوغندیوواورونـه کـول ،همـدې پیـل دمجاهـدینو اوعـام مخلص ولـس پـه ذهـن کـې داخـبره اوروحیـه واچولـه ، چې دامریکایانو مقابله کیدلای شي .

داچې میرصاحب دوه ځله زنداني شـوی وو، یوځـل په خوست کې دامریکایانو په لاس ، بل ځل په پاکستان کې ، په پاکستان کې یې چې نیږدې دوه کالـه دزنـدان سـخت تکلیفونه تیرکړل ، دمیرصاحب د زنـدان یـوملگري ،( موسـی فرهاد) وایی (میرصاب هلتـه ډیـر ځوریـدلی وو کلـه چـې اول ځل نیول شوی وو بیا یی ډیر سخت ځای ته اچـولی وو ، ده په هغه ځای کې هم له کړاوه ډکه څـه مـوده تیـره کـړی وه ، چې وزن یی تقریباً له شاوخوا ۱۰۰ کیلو څخه ٦٠ کیلوته را ټیټ شوی وو، بیا یی کله چې له هغه سـخته ځایـه مـوږ ته راووست، د وجود لخوا ډیر سخت ناتوانه سوی وو ، کومـو ملگرو چې هغه پخوا لیدلی وو او اوس یی ولیـدی هـیڅ یـی نه پیژانده او تصور یی نه کاوو چې دا هغه میرصاب دی، خو




په خبرو ، ټوکو او حوصله کې همغه سړی وو ، هیڅ ډول تکلیف یې نه محسوساوه . هر یوه ته به یې ډېره تسلی ورکوله، چې کله به دزندان یو مشر-اویابل افسرراغی ، نو ده به هغوته ډېرسپیین حقایق ویل ، خو بی نزاکتی ، او یا په بد اخلاقه لهجه خبرو کولو نه به یې هم خپله ځان ساته او هم به یې ملګرو ته ویل چې داسی حرکت به نه کوو ، چې دوی ته موږ سپک خلک ښکاره شو ، او یا وارخطا ورته ښکاره شو ، دوی ته به خبره په نزاکت او درنه لهجه کوو او څرګند حقایق به ورته وایو ، ترڅو چې دوی بی نزاکتی کړی نه وي.

دفرهاد په وینا ، خلاصه داچې شهید میرصاحب رح ، معقول ، ډېر هوښیار او ښه تقوا داره سړی وو . عبادت به یی ډېر زیات کاوه . په ډېر لږ وخت کې یې تر شل ، پنځه ویشت پارو پورې قرانکریم چې له زندان څخه ووت حفظ کړی وو، الله تعالی دي ټول تکلیفونه او قربانی ورته قبولي وګرځوي.

**شهادت:**

داسلام دلارې دلوی مجاهد اوداسلامي امارت دنومیالی مشر، شهید مولوي میراحمدګل هاشمي جهادي کارنامواوراتلونکو اتلولیزو پلانونو چې داسلام اوافغانستان ددښمنانو په سترګوکې اغزي جوړ کړي وو اوتحمل یې نشو کولای ،دهغوی په کرغیړنو لاسونو، دروان هجري قمري کال ۱۴۳٦ ، دشعبان المعظم میاشتي په ۲۴ نیټه دجمعي په مبارکه ورځ دهجرت په دیارکې په یوه بزدلانه حمله کې دشهادت لوړي اوسترې درجي ته ورسید، اناالله واناالیه راجعون،

دشهید میرصاحب جنازه په خپل ابایی ټاټوبي کې په داسې حال کې چې په زرګونو مسلمانانوپکې په ډېراخلاص اوعقیدت برخه اخیستي وه ادا اوبیا دپادخواب شانه دکلي دجامع جومات (مزار) په انګړ کې دنوموړي سیمي دلوي ولی الله (میرسیدمحمد ولي ) رحمه الله خواته دفن کړل شو.

سپیڅلي اروا دې ښاده، جهادي کارنامي دي ځلانده اودلاري مشعلونه وي، امین

حامد

# د شپې عبادت ته د هڅوني

# سل نصيحتونه

د شپې عبادت ته د هڅوني په اړه يو ډېر مهم حديث رااخلم، علي بن ابي طالب رضي الله عنه وايي: پشلمى مهال رسول الله صلى الله عليه وسلم راغى، او زه او فاطمه ويده وو، نو ويې ويل: تاسو دواړه نه پورته کيږئ چې لمونځ وکړئ؟ ما په ځواب کې ورته وويل: زموږ ځانونه د الله په واک کې دي، که د هغه يې پورته کول خوښ شي نو پورته يې کړي، علي وايي: هغه بيرته روان شو او ما ته يې هيڅ خبره ونه کړه، خو د بيرته ګرځيدو په وخت کې مې ورنه واوريدل چې په لاس يې خپل ورون وواهه او ويې ويل: انسان په ټولو کې ډېر جګړه مار دى. عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ ، عَنْ أَبِيهِ ، عَنْ جَدِّهِ ، قَالَ: أَتَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّحَرِ وَأَنَا وَفَاطِمَةُ نَائِمَانِ ، فَقَالَ : " أَلا تَقُومَانِ تُصَلِّيَانِ ؟ فَقُلْتُ مُجِيبًا لَهُ : إِنَّمَا أَنْفُسُنَا بِيَدِ اللَّهِ إِذَا شَاءَ أَنْ يَبْعَثَهَا بَعَثَهَا ، قَالَ : فَرَجَعَ وَلَمْ يُجِبْ إِلَيَّ بِكَلامٍ ، فَسَمِعْتُهُ حِينَ وَلَّى وَضَرَبَ بِيَدِهِ عَلَى فَخِذِهِ وَهُوَ يَقُولُ : وَكَانَ الإِنْسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلا. سورة الكهف آية ٥٤. رواه البخاري و مسلم.

د ځان د اصلاح، د اخرت د توښې د زياتولو او د فرضي عبادت د تکميل په نيت مو د شپې د عبادت په اهميت خبرې وکړې، بايد کوښښ وکړو دې لوى کار او ستر عبادت ته ځانونه تيار کړو، دلته څو هغه نصيحتونه او ګټورې خبرې رااخلم چې په برکت يې کولى شو ځانونه د شپې عبادت ته چمتو کړو، دا نصيحتونه بايد په دقت سره په مکرره توګه ولولو او بايد کوښښ او همت وکړو څو دا ستر عبادت ترسره کړو.

١په مخلصانه توګه د شپې د عبادت نيت کول.

-٢دا فکر کول چې لوى ښښتن دې د شپې عبادت ته وربولي.

٣دا فکر کول چې رسول الله دې د شپې عبادت ته وربولي.

-٤په دې خبره غور کول چې سلفو د شپې له عبادته څومره خوند اخيست.

-٥د شپې له مخې په ښې اړخ ويده کيدل

٦.په دې فکر کيدل چې د شپې عبادت د زړه غفلت له منځه وړي.

-٧دا فکر چې د شپې د عبادت په مهال دې الله ويني او لمونځ دې اوري.

٨د شپې په عبادت کې د رسول الله په کوښښ او زيار فکر کول.

۹د تهجد کوونکو په اجر او ثواب غور کول.

۱۰الله ته زاری کول چې د شپې د عبادت توفیق درکړي

۱۱په اوداسه ویده کیدل.

-۱۲په دې خبره غور کول چې الله د شپې په عبادت زیات خوشاله کیږي.

۱۳دا چې رسول الله آن د مرض په حالت کې هم تهجد نه پرېښودل.

۱٤د شپې په عبادت کې د صحابه کرامو په کوښښونو فکر کړول.

۱۵ماخستن وختي ویده کیدل.

۱٦په دې باور مول چې د شپې عبادت مومن جنت ته رسوي.

۱۷د ویده کیدلو په مهال دا نیت کول چې د شپې عبادت ته به راپورته کیږم.

۱۸دا خبره درک کول چې الله ملایکو ته په تهجد کوونکي فخر کوي.

۱۹په دې خبره غور چې رسول الله په جهاد کې هم د شپې عبادت نه پرېښود

۲۰له گناهونو ځان ساتل

۲۱له خوب مخکې مأثوره اذکار نه پرېښودل.

۲۲هغه لوی ثوابونه پیژندل چې الله د شپې عبادت کوونکو ته ټاکلي دي.

۲۳رسول الله صلی لله علیه وسلم په سفر کې هم تهجد نه پرېښودل

۲٤دا پیژندل چې د سلفو میرمنو د شپې په عبادت کې څومره کوښښ کاوه.

۲۵د تهجد کوونکو په کمښت سوچ او فکر کول.

۲٦په دې باور چې د شپې عبادت د نېکمرغۍ او د زړه د خوشالي سبب ده.

-۲۷له ډېر خوراک او څښاک نه ځان ساتل.

-۲۸رسول الله صلی الله علیه وسلم به خپلې میرمنې هم تهجدو ته پورته کولې

-۲۹د هغه وخت امیرانو او خلیفه گانو به هم تهجد کول.

۳۰دا فکر چې شیطان ولي کوښښ کوي د شپې له عبادته دې غافل او منعه کړي.

۳۱په دې پوهیدل چې جهاد کې د شپې په عبادت سره په دښمن برلاسي ترلاسه کیږي.

۳۲یخه هوا کې د خوب په مهال ځان ډېر تود نه پټول.

۳۳رسول الله به خپلو لونو ته هم د شپې د عبادت توصیه کوله.

۳٤په تهجدو کې د سلفو پر مخلصانه دعاوو غور کول.

-۳۵پر دې باور چې د شپې عبادت له جهنم نه د نجات سبب ده

۳٦په خوب کې افراط نه کول.

۳۷د تهجدو په اړه د سلفو په وصیتونو غور کول

۳۸له ځان سره حساب او د تهجدو په نه کولو ځان گرمول.

۳۹رسول الله خلک د شپې په عبادت کې سیالي ته رابلل.

۴۰- په دې باور چې تهجد د الهي توفيق او برياو سبب کيږي.

۴۱ له نفس سره جهاد او د شپې عبادت ته يې مجبورول.

۴۲ له خوب نه د ويښېدلو پر مهال سنت اذکار ويل.

۴۳ د شپې عبادت د محشر اوږدې دريدا ته ګټه رسوي.

۴۴ رسول الله به صحابه کرام تهجدو ته هڅول.

۴۵- په دې فکر کول چې سلفو به د تهجدو په قضا کيدلو ژړل.

۴۶ د شپې په عبادت سره ګناهونه بښل کيږي.

۴۷ د حلالي روزي خوراک په تهجدو کې مرسته کوي.

۴۸ پخپلو کې يوه بل ته د شپې د عبادت توصيه کول.

۴۹ دا پيژندل چې سلفو به پخپلو کې يوه بل ته د تهجدو توصيه کوله.

۵۰ دا پيژندل چې د شپې عبادت د مومن له پاره کرامت او شرافت ده.

۵۱ د شپې په عبادت کې د علماو د هڅو اندازه پيژندل.

۵۲ خپل ځان په لوړ همت سره روزل او لوړ اخلاق خپلول.

۵۳ په دې پوهيدل چې د شپې عبادت له الله سره خصوصي اړيکه ده.

۵۴ جنت او د جنت نعمتونو کې فکر کول.

۵۵ د شپې راپورته کيدلو په مهال مخته اوبه شيندل.

۵۶ په دې پوهيدل چې د شپې عبادت د خاتمې د ښه والي سبب ګرځي.

۵۷ دا پيژندل چې سلفو به د ميرمنو او اولاد په مجلس تهجدو ته ترجيح ورکوله.

۵۸ د شپې د عبادت په اړه پخپله کمزوري او تنبلي فکر کول.

۵۹ د جهنم اور او عذابونه يې رايادول.

۶۰ په دې پوهيدل چې د شپې عبادت د دعا د قبليدو سبب کيږي.

۶۱ د تهجد له پاره د راويښېدلو په مهال مسواک وهل

۶۲ هر وخت د شپې عبادت کول انسان ګناهونو پرېښودلو ته تياروي.

۶۳ دا خبره په ياد لرل چې د سلفو ميرمنو به خپل ميړونه تهجدو ته پورته کول.

۶۴ د شپې عبادت په نه کولو ځان ګرمول او ځان مقصر ګڼل.

۶۵ د شپې عبادت په شريعت باندې د استقامت او ثبات ذريعه ده.

۶۶ له دنيا سره مينه او د دنيا حرص کمول.

۶۷ کله کله له کوروالو سره په ګډه د شپې عبادت کول.

۶۸ په دې باور کول چې د شپې عبادت د الله د مينې سبب ګرځي.

۶۹ له وخت ضايع کولو او چټي ګپونو او خنداګانو ځان ژغورل.

۷۰ سلفو به د شپې د عبادت له پاره د اوږده ژوند سوالونه کول.

-۷۱لـه اخـرت سره اړیکـي پیاوړې کول.

۷۲دا پیژنـدل چـې د شـپې عبادت د مخ د ښکلا او نورانیـت سبب کیږي.

-۷۳هیلي او امیدونه کمول او مرگ ډېر یادول.

۷٤پـه دې پوهیـدل چـې د شپې عبادت د ژوند په سختیو او ستونزو کې مرسته کوي.

۷۵خپله میرمن او اولادونه د شپې عبادت ته پاڅول.

۷٦د شپې عبادت د قیامت په ورځ د سړي شفاعت کوي.

۷۷سلفو به د مرگ پـه بستر د تهجدو په قضا کیدلو تاسف کاوه.

۷۸عبـاداتو تـه پـه بیـړه او تلیوار ځان رووړدی کول او روزل.

۷۹د شپې عبادت کوونکی پـه خلکـو کــې درونـد او مـؤثر شخصیت وي.

۸۰قـبر او د قـبر سـختي او تیارې یادول.

-۸۱د شـپې عبـادت د الله د رحمتونو سبب کیږي.

۸۲یو چا ته ویل چې د شپې په فلان وخت مې پاڅوه.

۸۳سلف بـه د شـپې راتـگ تـه خوشالیدل او په تگ بـه یـې خپـه کیدل.

-۸٤کوښښ کول چې د شپې لمونځ درنه قضا نه شي.

۸۵قیامت او د قیامت سخت حالات یادول.

۸٦اول ماخســتن لنـډ دوه رکاته نفل کول.

-۸۷د شپې ساعتونو، دقیقـو او برخو تـه اهمیـت ورکـول او پـه دقیقه توگه شمیرل.

-۸۸دا پیژنـدل چـې د شـپې عبادت د ډېرو ناروغیو علاج ده.

۸۹د شپې عبادت پـه ورو ورو زیـاتول، مـثلاً پـه دوو یـا څلـورو رکاتو پیل او...

۹۰سلفو به په ناروغي کې هم د شپې عبادت کاوه.

۹۱ملایکـو د شـپې عبــادت کوونکـو تــه غــوږ نیـولی وي.

-۹۲د شـپې پـه عبـادت سره پـه مـومن کــې د "اخــلاص" غــوره صفت زیاتیږي.

۹۳سلفو بـه خپلـو میرمنـو او اولادونو ته د شپې د عبادت تربیه ورکوله.

۹٤د شــپې عبــادت آن پــه مخکینیو امتونو کې هم کیده.

۹۵داسي بــې ضرره وســایل برابـرول چـې د خـوب د زیـاتوالي مخه ونیسي.

۹٦غرمـه یـا ماسپښـین لنـډ وخت خوب کول.

۹۷دا فکر کول چې حیوانـات او ټول مخلوقات الله یادوي او ته ویده یې.

۹۸سلفو به خپـل شـاگردان او آن میلمانـه لا د شـپې عبـادت تـه هڅول.

۹۹د شـپې عبـادت د روحـي نـاروغیو عــلاج او د روحانیـت د پیاوړتیا مهمه ذریعه ده.

۱۰۰له سلفو به که د عذر لامله تهجد پاتـه شـول د ورځـې بـه یـې راگرځول.

خالد

# په ولسي جرګه برید د اسلام سره دښمني وه

## او که ډیموکراسی ته اهانت!؟

د روان کال د جوزا د میاشتې په ۳۱مه د سهار د ۱۰ بجو شاو خوا په کابل کې د ولسي جرګې پر ودانۍ وسله وال برید وشو، چې د خبري سرچینو د راپورونو پر اساس پکې د اوو کسو برید کوونکو په شمول دوه کسه مړه او تر ۳۰ زیاد ټپیان شول. دغه پیښې ملي او بین المللي عکسل العملونه له ځانه سره لرل. اشرف غني خپل عکسل العمل داسې څرګند کړ:«په ولسي جرګه برید، د اسلام له دین سره دښمني ده». خو به کابل کې د امریکا سفارت دغه برید وغانده او دا برید یې په ډیموکراسۍ، برید او ډیموکراسۍ ته اهانت وباله.

په ولسي جرګه دغه برید دوه متضاد غبرګونونه را وپارول چې اوریدونکي یې په اورېدو حیرانیږي او پوښتنه ورته پیدا کیږي چې اوس په افغانستان کې څه ډول یو نظام او عقیده حکومت کوي. له یوې خوا د ډیموکراسۍ چیغې وهل کیږي او له بل پلوه د اسلام.

کوم برید چې په ولسي جرګه (د ۲۱مې پیړۍ په دارالندوه) وشو ولسمشر هغه له اسلام سره دښمني و بلله، خو په کابل کې د اشغالګر دولت(امریکا) سیاسي نماینده ګۍ دا برید وغانده او هغه یې ډیموکراسۍ ته اهانت وباله. په داسې حال کې چې ټولو خلکو ته دا خبره څرګنده ده چې پارلمان اسلامي بنسټ دی او که ډیموکراتیک.

دا یو څرګند حقیقت دی چې اسلامي نظام؛ خلافت دی او جوړښت یې د ډیموکراسۍ غوندې نه دی او پارلمان غوندې تقنیني ارګان هم نه لري. خو ډیموکراسي د پانګوالۍ د ایډیولوژۍ سیاسي نظام دی او پارلمان یې د تقنین جوړولو ارګان دی، حال داچې په اسلام کې قانون او حکم یوازې او یوازې د الله سبحانه وتعالی له لوري وي چې په دې هکله داسې فرمایي:

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ.[یوسف: ۴۰]

ژباړه: حکم(امر و نهې، د حلال او حرامو ټاکل، نظام او قانون وضع کول) یوازې الله ج لره دی(او هیڅ څوک په حکم[امرو نهې، قانون جوړونه] کې له الله ج سره شریک نه دی).

د افغانستان خلک مسلمانان دي او نظام یې باید خلافت وي چې د دوی د سیاسي عقیدې څخه سرچینه اخلي، خو حاکم مزدور چارواکي لکه اشرف غني غواړي د خلکو په سترګو کې خاورې وشیندي او عامه افکار اغوا کړي چې ګویا د ده نظام( ډیموکراسي او د هغې یو مهم بنسټ پارلمان) اسلامي دی او هر هغه څوک چې ورسره مخالفت او جګړه کوي، د هغوی جګړه او مخالفت له اسلام سره مخالفت او جګړه ده.

خو لمر به دوه ګوتو نه پټیږي، که د اسلامي خاورو مزدور چارواکي هر څومره هڅه وکړي چې ډیموکراسي او اسلام سره یو وښیي، نه سره یو کیږي. ځکه چې ډیموکراسي یوه بشري مفکوره او بشري سیاسي نظام دي او اسلام د بشر د خالق له لوري د بشر د چارو تنظیم لپاره وحې شوې مفکوره او سیاسي نظام دی چې هیڅکله هم له ډیموکراسۍ سره نه شي یو ځای کېدای.

نو په پایله کې ویلای شو چې د افغان مزدورو چارواکو او د هغوی د بادارانو دا ډول مختلفې څرګندونې د دې ښکارندويي کوي چې د دوی ګومارل شوي مامورین هڅه کوي چې زموږ مسلمان خلک په کافر نظام(ډیموکراسۍ) او طاغوتي بنسټ(پارلمان) د اسلام په رنګ ورکولو تېر باسي، په داسې حال کې چې د دوی باداران په څرګنده دا وایې چې په افغان پارلمان برید په ډیموکراسۍ برید او اهانت و.

# ګل څونه

## غزل

جمال ثاقب

راته ګوري هر دېوال په ماښامونو
کړي ژړا زما په حال، په ماښامونو

دا تیاره-تیاره وختونه لږ رڼا کړه
راشه! وغوړوه شال په ماښامونو

هر ماښام دې د راتللو لارو ته ګورم
اخر واورېدلو کال په ماښامونو

زړه مې ټوله شپه نری-نری خوږېږي
چې را والوزي شمال په ماښامونو

دومره دېره خواته مه رانیږدې کېږه!
رانه ونه شي اوبال په ماښامونو!

زه به هم په هر لمانځه پسې تا غواړم
ته هم هر وخت کوه سوال په ماښامونو

ماته وایي لېونی به شې ثاقبه!
که مې وګورې جمال په ماښامونو

## فخرالدین رازی

آنکس که بداند و بداند که بداند
اسب خرد از گنبد گردون بجهاند

آنکس که بداند و نداند که بداند
بیدارش نمایید که بس خفته نماند

آنکس که نداند و بداند که نداند
لنگان خرک خویش به منزل برساند

آنکس که نداند و نداند که نداند
در جهل مرکب ابدالدهر بماند

## سعدی

انها که به سر در طلب کعبه دویدند
چون عاقبت الامر به مقصود رسیدند

رفتند در آن خانه که بینند خدا را
بسیار بجستند خدا را و ندیدند

چون معتکف خانه شدند از سر تکلیف
ناگاه خطابی هم از آن خانه شنیدند

کای خانه پرستان؛ چه پرستید گل و سنگ
آن خانه پرستید که پاکان طلبیدند

# غزل

سهیلی

هـر چـه کنـی بکـن ولـی از بـر مـن سـفر مکـن
یـا کـه چـو مـی روی مـرا وقـت سـفر خـبر مکـن

گـر چـه بـه غـم سـتاده ام نیسـت تـوان دیـدنم
شـعله مـزن بـر آتشـم از بـر مـن گـذر مکـن

روز جـدایی ات مـرا یـک نگـه تـو میکشـد
وقـت وداع کردنـت بـر رخ مـن نظـر مکـن

دیـده بـه در نهـاده ام تـا شـنوم صـدای تـو
حلقـه بـه در بـزن مـرا عاشـق در بـه در مکـن

مـن کـه ز پـا نشسـته ام مرغـک پـر شکسـته ام
زود بیـا کـه خسـته ام زیـن همـه خسـته تـر مکـن

گـر چـه بـه دور زنـدگی تـن بـه قضـا نهـاده ام
آتشـم ایـن قـدر مـزن رنجـه ام ایـن قـدر مکـن

یوسـف عمـر مـن بیـا تنگـدلم بـرای تـو
رنـج فـراق مـی کشـد خـون بـه دل پـدر مکـن

هـر چـه کـه نالـه مـی کـنم گـوش بـه مـن نمیکنـی
یـا کـه مـرا ز دل بـبر یـا ز بـرم سـفر مکـن

## بیت

هرکه عیب دگران پیـش تو آورد و شمرد
بی گمان عیب تو پیش دگران خواهـد برد

## قطعه

اُفتـاده دِرَختـی کـه بـه خـود مـی بالیـد؛
از داغِ تَـبَرِ بـه خـاکِ غَـم مـی نالیـد؛
گُفـتم: چـه کَسـی بـه ریشـه ات زَد؟ گُفتـا؛
آن کَس که به زیرِ سایه ام می خوابید ...!

## بیت

چو میبینی که نابینا و چاه است .....
اگر خاموش بنشینی گناه است

## قطعه

اي خواجـه چـه جـويي ز شـب قـدر نشـاني
هر شب شب قدر است
اگر قدر بداني...

پیر هرات (جامي)

لیکوال: م عثمان متوکل

# جهادي لوري ته

## څو تذکیري یادونې

د افغانستان جهاد حساس پړاو ته رسیدلی، د څوارلس کلونو قربانیو د ثمرو ترلاسه کولو وخت رانږدې شوی، دښمن د مجاهدینو په ضد دسیسو جوړولو کې تر بل هر وخت زیات مصروف او د جهادي خوځښت د متلاشي کیدو لپاره پلان ګذارۍ کې سرګردان دی.

څرګنده خبره ده چې په داسې وخت کې باید مجاهدین د تیرو کلونو په پرتله ډیر ځیرک، با تدبیره او خپل اسلامي منهج ته لا پابند اوسي او د الله تعالی لویي او ډار تـه پـه زړونو کې خاص ځای ورکړي، په داسې حساس پړاو کې د دوی یوه کوچنۍ غلطي د نه جبرانیدونکو زیانونو سبب ګرځیدی شي.د (وذکر فإن الذکری تنفع المؤمنین) او د پیغمبر علیه الصلاة والسلام د دې حدیث په بنیاد چې فرمایي: (الدین النصیحة قلنا لمن قال لله ولکتابه ولرسوله ولأئمة المسلمین وعامتهم), د اسلامي امارت له مسؤولینو سره، چې په (أئمة المسلمین) کې راځي، یو څو خبرې شریکول غواړم:د مجاهدینو په فکري روزنې تمرکز:په یو جهادي بهیر کې د فکري روزنې اهمیت که تر بدنې هغې زیات نه وي کم ترې نه دی.

د حق او باطل په ټکرونو کې نصرت او فتح تل د مجاهدینو د نیتونو په سپیڅلتیا کې نغښتې، که په پاکو او خالصو نیتونو او لوړو اهدافو روزل شوي وي برې د همدوی په برخه شوی، خو بالمقابل، په نیتونو کې یې کوچنی خلل د ماتې سبب هم ګرځیدلی.

باید دا ګومان و نه شي چې د صلیب تر شکست وروسته د جګړې ګټل اسان دي، هو لاسپوځي یې شاید د هغو په پرتله د کلک مقاومت وس نه ولري، خو دې تـه مـو پام وي چې په داسې مرحله کې مجاهد له نوي امتحان سره مخ کیږي او په وړاندې دامونه هم زیاتیږي، کـه هغـه پـه جهادي منظمه کې د تفرقه اچونې په بڼه وي، یا لـه مادیاتو سره د مینې او یا په نورو اشکالو.

د فتحې پـه رانـږدې کیـدو سره نیتونـه او نفسـونه پـه پخواني حال نه پاتې کیږي مخصوصا چې کله یې له تزکیې غلفت وشي، دا خبره هم د عقل او هم د تجربې پـه اساس ثابته ده.په جهادي روح سره د مجاهدینو قوي روزنه د جهاد د کامیابۍ یوازنۍ لار ده، یـوازنۍ ځکـه ورتـه وایـو چې د کامیابۍ نور ټول اسباب بیرته همدې نقطې ته راګرځي.

د مجاهدينو د بدني روزنې تر څنګ باید په مختلفو بڼو د دوی فکري روزنې ته د تیر په پرتله څو چنده توجه وشي.

خو دا روزنه باید دوامداره، او هم د مجاهدینو خاص او عام ته شامله وي، نه داسې چې په یوې خاصې مرحلې پورې ځانګړې وي او یا ترې خواص مستثنی وګڼل شي.

همدا راز، فکري روزنه باید د محتوا له لحاظه جامع او شامله وي، د عقیدوي درسونو تر څنګ، باید په ځینو مهمو ټکو زیات ترکیز وشي، لکه د امیر اطاعت، په امیر او مجاهدینو باندې حسن الظن، له عوامو سره د تعامل څرنګوالی، له ځینو مشروعو ابتدائي سیاسي اصولو باخبري، او ورته نور.

دعامو مجاهدینو او ولس ذهنیتونو ته خاصه پاملرنه:د مجاهدینو د واحد صف د ویشل کیدو په مقصد له پخوا راهیسې د بیلا بیلو کړیو لخوا بیلابیلې لارې په کار اچول شوي، خو تر ټولو خطرناکه یې شاید د جهادي خوځښت په ضد د نویو او تازه تبلیغاتو خپرول وي، خطرناکه ځکه ورته وایو چې د نورو وختونو په خلاف، اوس د دې هدف لپاره په شعوري یا لاشعوري هغه څوک استخدامیږي چې فعلا دامارت په جهادي تشکیلاتو کې دخیل او په عوامو کې په همدې صفت پیژندل شوي وي.

که له یوې خوا د داسې وګړو شمیر په نشت حساب دی خو له بلې خوا یې د یو پټ منظم پلان له مخې د تقویه کیدو هڅې کیږي، په دې باید سترګې پټې نه شي چې د دوی لخوا تر سره کیدونکي مکرر تبلیغات په عوامو او د مجاهدینو په افرادو کې ضرور ځای نیسي، په تیره بیا چې له دیني اصولو ناخبري هم ورسره مل وي او تر څنګ یې عملا داسې څه وګوري چې ظاهرا د دوی د خبرو تصدیق کوي. طالبانو ته په کار ده په خپلو پلانونو کې، که نظامي وي او یا سیاسي، د دې نقطې پوره مراعت وکړي، البته دمراعت څرنګوالی به یې وخت او قضیې ته په کتلو سره ټاکل کیږي نو ځکه مختلفې بڼې درلودلی شي، د بیلګې په توګه:له ځینو غیر مرغوبو جهتونو سره تماس نه نیول، ځینو ناڅرګندو سیاستونو په اړه ولس له حقیقته خبرول، په اعلامیو او بیانیو کې د دې کوښښ پر ځای چې دښمن د مجاهدینو په اړه نیک ذهنیت واخلي او یو شمیر مصالح تر لاسه شي، باید هڅه وشي عام مجاهدین او ولس په خپلو مشرانو لا باوري او ډاډمن کړل شي، اما په یو وخت کې دواړه موخې ترلاسه کول د یو محال هدف د ترلاسه کولو په معنا دی، په تیره بیا په افغاني ټولنه کې، چیرته چې د ناپوهۍ او د بیلا بیلو شیطاني وسوسو کچه اوج ته رسیدلې.دا اصل باید له پامه و نه غورځول شي ولوکه په مراعت سره یې په ظاهري توګه لوي مصلحتونه هم له لاسه وځي، د جهاد د کامیابۍ راز د الله تعالی تر مرستې وروسته د افرادو او عوامو په ملاتړ کې نغښتی دی (هو الذي ایدك بنصره وبالمؤمنین)، او ښکاره ده چې د جهاد کامیابي تر بل هر څه لوړ مصلحت دی.په تیره لسیزه کې ډیر کم داسې تر سترګو کیږي چې امارت دې د عوامو د ذهنونو د کچې مراعت نه وي کړی، خو امید دی چې په راتلونکي کې په همدې تګلاره څو چند ټینګ اوسي، اوس تر بل هر وخت د دې نقطې مراعت ډیر اړین دی، هم شرعا او هم عقلا ، نوربیا...

موسی فرهاد



# د القاعده

## او داعش ترمنځ توپیر !!! ...

القاعده : د منځني ختیځ د کړکیچ له راپیداکیدلو سره چې اوس څه دپاسه اووه لسیزي وربانديٍ تیریږي ؛ د غرب او مسلمانانو ، په ځانګړي ډول په عربي نړۍ کې د متعهدو مسلمانانو ترمنځ د دښمنۍ واټن په پراخیدو شو. د امریکا او نورو لویدیځو هیوادونو له لوري د اسرائیلي اقلیت ، علني ملاتړ چې تراوسه ادامه لري ؛ د مسلمانانو په زړونو کې د کرکي او انتقام جذبه پیدا کړه ، له همدې ځایه وه چې په شرق الاوسط ، عربي خلیج ، او د افریقایی قارې په یوه برخه عربي هیوادونو کې یو شمیر اسلامي خوځښتونه په حرکت کې شول ، ترڅو د صهیونیستي احتلال مخه ونیسي ، د فلسطینیانو ، او د نوري عربي نړۍ د مسلمانانو د حقوقو څخه دفاع وکړي ، دا خوځښتونه که څه هم په لومړي سر کې د انتفاضو (ملي پاڅونونو) په بڼه وو ، لکه انتفاضة الأقصی ، انتفاضة فلسطینیة ، انتفاضة الحجارة ، او داسي نور ... خو وروسته وروسته په منظمو تحریکونو بدل شول چې د فلسطین اوسني جهادي تنظیمونه د همغي لړۍ یو تسلسل بلل کیږي.

القاعده تنظیم که څه هم په ډېر وروسته کې راپیدا شوی خو سرچینه یې له همغه ځایه را روانه ده ، شهیدعبدالله عزام چې تراسامه بن لادن وړاندي د دغي ډلي مشر بلل کیده ؛ د فلسطیني انتفاضي غړی پاتي شوی ، همداراز نور وګړي یې هم اکثراً د هغه تسلسل لارویان وو .

داعش : لکه مخکي مو چې یادونه وکړه ، د منځني ختیځ د ملي او اسلامي پاڅونونو په پایله کې د القاعده ګوند خلک راپیدا شول، خو د منظم تحریک شکل یې هغه مهال خپل کړ چې د روسی یرغل پرخلاف یې په افغان جهاد کې برخه واخیستله ، دغه مهال یې داعیه هم بدله شوه ، چې له منځني ختیځ څخه د دفاع پرځای یې نړیوال جهاد او عالمي مبارزه اعلان کړ ه . او هم یې تنظیم وغوړیدی ، تقریباً د نړۍ په بیلابیلو نقاطو کې یې څه باندي ۲۷ څانګې تأسیس کړي ، چې ټولو ډلو یې د القاعده د منشور او کړنلاري کلک التزام کاوه . د اوسني داعش وګړي هم د همدې کاروان یوه حلقه وه چې په ۲۰۱۴م کال کې د نظر د اختلاف له امله په عراق کې له القاعده بیله شوه ، د داعش نوم یې خپل کړ او خلافت یې اعلان کړ . دا چې د دوی ترمنځ څومره او څه توپیر دی ؟؟ په لاندي پراګراپونو کې به یې مختصراً ذکر وکړو:

**۱ - پولي او حدود:**

پر یوه نقطه چې القاعده او داعش دواړه متفق دي ؛ هغه د پولو او حدودو ماتیدل دی ، دواړه په دې عقیده دي چې زموږ مبارزه باید تر کومي ځانګړې جغرافیې پوري محدوده نه وي ، د نړۍ په هرکونج کې چې مجاهدین وغواړي پر دښمن باندي برید کولای شي. پولي او حدود په اسلام کې نشته .

خو اختلاف یې په دې کې دی چې داعش واکمني غواړي ، خلافت یې اعلان کړی او نوري سیمې تر خپلي ولکي لاندي راوستلو لپاره جګړه فرض بولي.

اما القاعده د ځمکو د نيولو ، او حمکراني کولو فکر نلري ، بلکي يوازي دا غواړي چې نړيوال استعماري قوتونه دې د مسلمانانو حقوق ورکړي او پر هغوی دې ظلم نه کوي.

**۲ - د جګړې هدف :**

د القاعده د جګړې هدف يوازي صهيونيستي او صليبي کافران دي ، پر مسلمانانو باندې هغوی د بريد هيڅ منشور نلري ،که څه هم هغه مسلمانان ، په اصطلاح طاغوتي واکمنان وي . دوی وربانديې د بريد هوډ نلري . له کله نه چې د القاعده بنسټ ايښودل شوی ، تراوسه پوري يې ټول بريدونه که په هرځای کې يې ترسره کړي ؛ پر غربيانو او د هغوی پر متحدينو او د هغوی پر اهدافو يې کړيدي .

ولی داعش بيا له پيل نه د جګړې هدف مسلمانان ګرځولي دي. د شيعه ، سني په نوم جګړه يې ډېره ګرمه ساتلي ده ، په لومړي سر کې امريکايانو او نورو غربي حکومتونو له داعش نه ډېره ستره خطره محسوسه کړه ، ځکه يې د هغه پرضد جنګي ائتلاف جوړ کړ ، خو وروسته ورو ورو پوهـ شول چې ، داعش اصلاً په خپله له مسلمانانو سره خصوصاً له متعهدو ، متحرکو مسلمانانو سره د جګړې هوډ لري ، نو يې په عراق او سوريه کې پر داعش بمبارونه او هدفي بريدونه کم کړل.

**۳ - دښمني :**

له القاعده او داعش دواړو سره په نړيواله سطحه مخالف شته ، خو توپير يې دا دی چې له القاعده سره سياسي مخالفت دی ، يعني حکومتونه يې مخالفت کوي ، ځکه چې القاعده د هغوی ګتې تحديده وي ، چې وايي د مسلمانانو خصوصاً د جزيرة العرب دمسلمانانو شتمني يې غصب کړي او د هغوی حريت يې سلب کړی دی . له همدې ځايه ده چې په ولسونو کې خصوصاً په اسلامي ولسونو کې د القاعده مخالفت ډېر کم حتی صفر دی. په زړه کې خلک ورسره خواخوږي لري.

ولي له داعش سره مخالفت ، لومړی د نا انساني کړنو له امله دی ، د يو کال په موده کې هغوی داسي جرائم انجام کړل چې د ټولو انسانانو که مسلمان دي ، که نامسلمان ؛ په زړونو کې يې کرکه را پيدا کړه . نژدې ده چې هغوی د دې عصر چنګيزي لښکر وګڼل شي.

**۴ - عقيده:**

له مذهبي پلوه القاعده او داعش دواړه شخصي- تقليد لازم نه بولي ، ولی القاعده دا موضوع دومره جدي نه ګڼي ، چې د خپلي سياسي او جهادي مبارزې محور يې وګرځوي ، په القاعده کې ډېر داسی ګروپونه موجود وو چې مقلدين وو ، لکه د کردستان د ابوحامد الکردي ګروپ چې شافعي مذهبه و. او دا رنګه د تبت يغوري مسلمانان چې اکثره يې احناف وو ، او له القاعده سره تړلي وو.

ولي داعش بيا دا موضوع دومره جدي ګڼي چې نه يوازي سلفيت ته معتقد دي ، بلکي تکفيري فکر لري ، تکفيري ډله هغه افراطي ډله ده چې د ګناه مرتکب کافر ګڼي ، که څه هم صغيره ګناه وي ، دوی وايي : يوڅوک چې يوځل مسلمان وی نو هغه خو بايد ګناه ونکړي که يې وکړه نو د خدای مخالفت يی وکړ ، د خدای مخالفت کفر دی ، لهذا د ګناه مرتکب کافر دی ، همدا وجه ده چې د داعش په نزد د هرچا مرګ جائز دی ، ځکه چې ګام پر ګام له يو مسلمانه هرو مرو خطا کيږي . دوی وايي : د ابوبکر بغدادي د خلافت دعوت خو لومړی مسلمانانو ته دی چې هغوی يې بايد ومني او دا يو شرعي دعوت دی ، چې هغوی يې نه مني ، نو ګويا له شريعت نه يې سرغړونه وکړه او په دې سره سړی کافر کيږي . نو لومړی بايد له هغو مسلمانانو سره جنګ وشي چې خلافت نه مني . له همدې امله داعش اوس دجګړې هدف هرځای مسلمانان خصوصاً مجاهدين ګرځولي دی ، که په سوريه کې دی ، که په يمن کې دی او که په افغانستان کې

**۵ – قیادت:**

د القاعده قیادت او مشرتابه ډېر ځرګند او معلوم الهویته اشخاص دی چې ډېر پخوانی مشر- یې ، شهید عبدالله عزام ، بیا شیخ اسامه او اوس ایمن الظواهري دی ، د دوی او د دوی د نورو مشرانو بک ګراؤنډ ترډېره حده هرچا ته معلوم دی او پیژني یي ، ولي د داعش ستر مشر- خلیفه ابوبکر البغدادي ، له هویت نه هیڅ څوک علم نه لري ، داسی نامعلوم او مجهول الهویته شخص چې په عراق او سوریه کې یې هم خلک له اصلي پیژندلو عاجز دي.

**٦ - افراد :**

د القاعده او داعش دواړو ډلو افراد له یوه خاص توکم او خاصي جغرافیې سره تړلي نه وي . بلکي د نړۍ له هري برخي دواطلبه مسلمان ځوانان د خپلي اسلامي جذبي له مخي له دوی سره یوځای کیږي . خو القاعده همیشه د دغو وګړو په انتخاب کې ډېر دقت کوي ، تر میاشتو میاشتو پوري د هغوي پر روزنه او تربیه کار کوي ، بیا ګوري چې کوم نامطلوب کس وي او د دوی له مقرراتو سره سمون نه لري ؛ مستردوي یي . او له خپل تنظیمه یې شړي . نه داچې د خپلي ډلي د غړولو په منظور هرڅوک ورسره ملګری کوي . ویل کیږي چې ابوبکر البغدادي هم د همدې تګلاري ښکار شوی دی . یعنی القاعده ته د نامطلوبیت پر آساس له القاعدې څخه شړل شوی دی.

همدا وجه ده چې القاعده د ګوتو په شمار خلک لري، خو هغه یې په اصطلاح رول ماډل او قابل خلک وي . خو برعکس داعش بیا کوشش کوي چې په هره سیمه کې چې هرڅوک د دوی داعیې ته لبیک وایي ؛ دوی یې په پټو سترګو مني ، که څه هم هغه په سیمه کې رټل شوي او نامطلوبه اشخاص وي . نو له یوې خوا د داعش انتهایي افراطي تګلاره او له بلي خوا د نامطلوبو اشخاصو له لوري پرمخ وړل ، داعش ته له نفرتونو او کرکي پرته بل هیڅ ورنکړل . دا لوبه یې په افغانستان او پاکستان کې هم د نورو عربي ملکونو په شان عملي کړه ، خو فکر کوم چې له ناکامۍ سره مخ شوه .

**۷ - تشبث :**

القاعده د خپلي مبارزې په ټول دوران کې د نړۍ په هرکونج کې د هغې سیمي له ځایي مسلمانانو سره داسی چلندغوره کړی چې یا خو یې د هغوی تر سیوري لاندي ژوند کړی او یا یې په هم آهنګي کې ورسره کړی ، همدا وجه وه چې ځانګي یې په هره سیمه کې وي ، مګر هیڅ کله یې مذهبي ، سمتي ، قومي او ژبني تعصباتو ته لمن ونه وهله . په افغانستان کې یې هم د روس سره د جهاد پر مهال له مجاهدینو سره په همآهنګي ژوند درلود او له هغه را وروسته یې د اسلامي امارت سره په بیعت کې او د امارت تر بیرغ لاندي خپله کړنلاره تعقیبوله . ځیني کارونه چې یې د امارت له اجازې او مشوري پرته ترسره کړي او پایله یې ناسمه وه ؛ پر هغو کارونو باندي یې ندامت او پښېماني ځرګنده کړي .

ولي داعش بیا دا ضرور بولي چې په هره سیمه کې دي د دوی بیرغ اوچت وی او خلک دې پرته له چون وچرا د دوی تر بیرغ لاندي شی او له مذهبی تقلیده دي ځان آزاد کړي او د خپلي سیمي د ټولو عنعناتو خلاف دې د دوی هدایات ترلاسه کوي او عملي کوي دي . که داسی ونکړي نو جګړي ته دې تیار شی ، چې مخالفت کوونکی به وژل کیږی ، کور به یې ورانیږي ، ښځینه به یې مینځې کیږي او ماشومان به یي غلامان کیږي.

د سیمییزو خلکو په ټولو چارو کې مداخله کوي ، معتقدات او عنعنات یې تحقیروي ، په زور او جبر یې ورځینی منع کوي . د دې ټولو کارونو عملي بیلګې موجودي دي .

**۸ – تمویل:**

د القاعده بنسټ گر ، شیخ اسامه بن لادن کـه څـه هـم پخپله دومره شتمن وو چې ویل کیـږي د سـعودي حکومـت یې د عراق په لومړۍ جگړه کې ۱۲۰ میلیارد ، ریاله قرضـداره وو . خو نوموړی له خپلي ټولي شتمنۍ څخه محـروم کـړای شو او د تنظیـم د چلولـو لپـاره یـې د نـړۍ د مسـلمانانو پـر انفرادي تبرعاتو تکیه وکړه چې هغوی به له حکومتونو په پټه تطوعي مرستي ورسره کولي . هیڅ داسي سرچینه یې ترپایـه ونه موندل شوه چې له هغه نه دي دوی په خلاص مټ تـوري پیسې ترلاسه کړي وي

خو برعکس داعـش د خپـل ظهـور سره سـم د یـو ډېـر شـتمن غورځنـگ پـه بڼـه راڅرگنـد شـو ان داچـې د عـراق دامریکا پلوي حکومت نه یې امکانات او پیسې ډېـري وي . ځیني خلک یې لامل د نفتو منابع بولي چې د عراق په ځینـو برخو کې د دغي ډلي په ولکه کې دي. خو ځیني بیـا پـه دې عقیده دي چې د تورو پیسو ډېري لاري وربانـدي راخـلاصي دي.

**۹ – د علماؤ له نظره:**

د القاعده شبکې مشران خپله هـم داسي خلـک وو چـې له علمي او فقهي وړتیا څخه ښـه بـرخمن وو ، لکـه عبـدالله عزام چې په لسگونو فقهي او اسـلامي کتابونـه یـې تصـنیف کړي دی . او په نړۍ کې خصوصاً په عربي نړۍ کې اکثریت مخورو دیني پوهانو پـه مجمـوع کـې د القاعـده لـه داعیـې څخه ننگه کوله او کوي یې . مگر ځیني انفرادي کـړني یـې وخت ناوخت علماؤ هم ناسمي گڼلي . لکه شامي عالم علامه المقدسي او اردنی ابوقتـاده د القاعـده کلـک ملاتـړي دي ، مگر د یولسم ستمبر لـه پیښې او پـه ریـاض کـې د دوه زره دریم کال چاودنو سره یـې توافـق نـه درلـود . داسـی نـوري بیلگې یی هم شته .

مگر د داعش رهبري نـه پـه خپلـه لازم دینـي پوهـاوی لري او نه د فتوا لپاره د علماؤ ملاتړ لـري . یعنـي نـه یـوازي داچې د داعش انفرادي کړني د عربي نړۍ د مشهورو علماؤ له لوري غندل شوي ؛ بلکـي د داعـش ټـول آسـاس د هغـوی (علماؤ) له نظره قابل انتقاد دی.

**۱۰ - نتیجه :**

القاعده د خپلي داعیې لپاره چې نړیوال جهاد پیلول ؤ؛ ترډېره حده په بریالیتوب سره کـار وکـړ ، یعنـي د نـړۍ پـه ډېـرو برخـو کـې د دوی پـه هڅـو او ملاتـړ سره جهـادي تحریکونه یا خو له سره احیاء شول او یا وغوړیـدل ، لکـه پـه صومال ، چیچین ، نایجیریا ، سوریه ، عـراق ، یمـن او داسـی نور ... سیمو کښې .

او داعش لـومړی تنظیـم دی چـې د دغـو تحریکونـو د ځپلو لپاره یې هڅې پیل کړي دي . اکثرو تـه یـې خـط کـش کړی چې یا خو ورسره خلافت ومني او یا جگړې ته تیـار سي . تراوسـه پـه نایجیریـا کـې بوکـوحرام ، او پـه مصريـي ټـاپو (سیناء) کې جنگیالیو د داعش سره یوځای والی اعلان کـړی دی . او د شام جبهة النصره او یمن انصارالشریعة لخوا یې بیعت مسترد شوی چې له امله یې تراوسه په سلگونه کسـان د داعش له لوري په شهادت رسیدلي دي.

لنـډه داچـې د ډېـرو څېړونکـو لـه انـده ، د یـادو دوو تنظیمونو ترمنځ ، ترټولو ستر توپیر دا دی : کومي هڅې چې القاعده د غرب په وړاندي له اوږدې مودې راهیسې انجـام کـړي وي ، او د خـپلي داعیـې لپـاره یـې څـه ناڅـه جنگـي خوځښتونه رامنځ ته کړي ؤو ، او لویـدیځ تـه یـې سرخـوږی جوړ کړی ؤ ؛ ممکنه ده چـې هغـه ټـولي هڅـي د داعـش لـه لوري له رکود سره مخ شي ، چې غرب او متحدین یې دا کـار په ډېر لوړ قیمت هم نشي ترسره کولای.

پای.........



# مطالعه خوب و نوشتن خوب

نويسندگي فني است
كه تا ذوق نباشد حاصل نمي‌شود و خود
ذوق؛ يعني چشيدن. ادبيات را بايد چشيد و وقتي چشيده شود شوق حاصل مي‌شود. حتما براي‌تان پيش آمده است كه با خواندن يك متن، اشك از چشمان‌تان سرازير شده است. اين هنر نويسنده است و روحيه نويسنده در تأثر شما كارگر بوده است.

برخي از نويسندگان واقعا جالب و زيبا مي‌نويسند؛ يعني دلتان نمي‌خواهد نوشته‌شان را كنار بگذاريد؛ يعني ذوق را بر شما تحميل مي‌كند و در وجود شما شوق خواندن را برمي‌انگيزد. گاهي مفاهيم اين كار را مي‌كنند و گاهي الفاظ و گاهي هر دو. يكي از دكترها به اسم يوسف موسي كتاب «ماذا خسرالعالم» تاليف علامه ندوي را در يك روز به پايان مي‌رساند. ايشان مي‌گويد: به‌خاطر اينكه مفاهيم بلند و زيبايي داشت در يك روز تمامش كردم.

در فارسي هم، ما اين‌گونه نوشته‌هاي زيبايي، چه از گذشتگان و چه از معاصران، داريم. ما تا زيربناي مطالعاتي خوبي نداشته باشيم، هرگز نمي‌توانيم يك نويسنده موفقي بشويم. ذخيره كلمات خيلي ضروري است. وقتي كه درون، خالي باشد آدم نمي‌داند چه بنويسد و از طرف خودش تعبير درست مي‌كند ولي جالب در نمي‌آيد .

بنابراين موفقيت ما در نويسندگي در گرو مطالعات قوي است و مطالعه هم بايد با گزينش صورت بگيرد. خيلي از كتاب ها كشنده اوقات هستند. كتاب‌هايي را مطالعه بكنيم كه از آن‌ها لذت مي‌بريم . بعضي كتاب‌ها مربوط به قواعد هستند و قواعد را بايد بخوانيم ولي كتاب‌هايي كه ما در جهت رشد ادبي خودمان از آن‌ها استفاده مي كنيم بايد كتاب‌هايي باشند كه خود كتاب مارا جلوببرد؛ يعني كتاب چنان شوق و انگيزه اي ايجاد بكند كه سبب رشد و جلورفتن ما بشود. دكتر محمود احمد غازی برای تقویت نویسندگی یک راه حل بسيار خوب و آسان پيشنهاد مي‌دهد. مي فرمايد: شما روزانه صد صفحه يا ده صفحه مطالعه بكنيد و يك دفتر بزرگي براي خودتان تهيه كنيد و هر روز يك صفحه بنويسيد.سپس فرمودند: اگر شما يكسال براين برنامه پايبندي بكنيد شما موفق مي‌شويد وسهمي از ادبيات حاصل مي‌كنيد. هر مطلبي را كه خوانديد شبيه آن را بنويسيد؛ يعني به نوشتن روزانه، خودتان را موظف بكنيد، ولي حتما پشتوانه مطالعاتي داشته باشيد. به اين صورت هر روز درصد توفيق‌تان بالاتر مي‌رود. و در صد روز شما صددرصد بالا مي‌رويد و اگر صددرصد بالا نرويد پنجاه در صد بالا مي‌رويد .

شما اگر اين دو كار را نكنيد و هر چه بكنيد باز هم به جايي نمي‌رسيد: نوشتن خوب و مطالعه خوب.اگر اين دو كار را نكرديد نويسنده نمي‌شويد بلكه معلومات نويسندگي را حاصل مي‌كنيد. وقتي نويسند مي‌شويد كه در اين فن وارد بشويد و ورود به اين فن با نوشتن ات .

و شما در هر جا مي توانيد بنويسيد. من اين روزها مجالس حسنه را دارم مي خوانم علامه ندوي آنجا نوشته كه من در بمبئي پيش فلان حاجي مي‌رفتم و خيلي از كتاب‌هاي خودم را در منزل ايشان نوشتم .

وقتي انسان با نوشتن انس بگيرد براي او فرق نمي‌كند كه كجاست. در سفردر قطار در ايستگاه قطار مي‌تواند بنويسد. آيا مي‌دانيد بسياري از كتاب هاابوالحسن كه در مدارس مي خونيم مثلا قصص النبيين را رد ايستگاه قطار نوشته است . از اين اوقات مرده استفاده بهينه كرده است .

شما در مسير نويسندگي باشيد و نگاه نكنيد كه در كجاي اين مسير قرار داريد. شما حركتتان را بكنيد و كسي كه مسير را ادامه مي‌دهد به نتيجه مي‌رسد. و شما هيچگاه نه توقف بكنيد و نه نوميد بشويد به اين گمان كه نمي‌شود. مي‌شود بنويسيد بنويسيد بنويسيد تا اخر به نتيجه خوبي دسترسي پيدا مي‌كنيد.



## د کندز ولایت دنظامي کمیسیون له مسئول سره مرکه

# مولوي رحمت اللّه:

## د عزم عملیاتو په لړ کې په کندز کې د دشت ارچي او چهاردرې مهمې ولسوالۍ فتحه شوي دي

درنو لوستونکو !

کندز ولایت دافغانستان په شمال کې موقعیت لري چې ختیځ ته یې تخار ، جنوب ته بغلان ، لویدیځ ته بلخ او شمال ته یې دګاونډي هیواد تاجکستان حدود پراته دي ، کندز ولایت چې ۸۰۴۰ مربع کیلومتره مساحت لري نفوس یې دوروستیو شمیرنو له مخې تر ۸ لکو زیات ښودل شوی دی .

کندز ولایت په مرکزي ښار سربیره د امام صاحب ، چاردرې ، قلعه زال ، علي اباد ، خان اباد او دشت ارچي په نومونو شپږ ولسوالۍ لري ، دکندز اوسیدونکي پښتانه، تاجک ، ازبک ، ترکمن ، عرب ،ایماق او هزاره افغانان دي، دکندزولایت مرکز (کندز ښار) دی چې دافغانستان په شمال کې تر مزارشریف وروسته دوهم ستر ښار بلل کیږي .

سږ کال د عزم عملیاتو په لړ کې په کندز ولایت کې د نورو سیمو په نسبت بې ساري پرمختګونه شوي دي مجاهدینو د ولسوالیو په سطحه سیمې فتحه کړې او دښمن یې په شا تمبولی ، ددغو فتوحاتو په اړه مو ددې ولایت له یو تن مجاهد سره مرکه کړې چې ستاسو پام ورته راړوو.

**پوښتنه**

له هرڅه مخکې که ځان رامعرفي کړئ .

**ځواب**

زما نوم مولوي رحمت الله دی د افغانستان اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د کندز ولایت د نظامي کمیسیون د مسؤل په حیث جهادي دنده اجراء کوم .

**پوښتنه**

سږ کال په کندز کې مهم فتوحات وشول او مجاهدینو ډیرې سیمې ونیولې که ددې فتوحاتو په اړه معلومات راکړئ ؟

**ځواب**

په کندز کې سږکال د عزم عملیاتو په لړ کې په ځلورو سیمو کې لوی فتوحات وشول له دې جملې د د مرکز مربوط د ګورتیپې ، تولکه او شرکت سیمې مجاهدینو ونیول،د چهاردې او دشت ارچي ولسوالۍ مکملې فتحه شوې او د امام صاحب په ولسوالۍ کې هم پراخې سیمې د مجاهدینو لاس ته ورغلې .

د ۱۴۳۶هـ ق کال د رجب المرجب د میاشتې په ۶ نیټه مجاهدینو د الله تعالی په نصرت مرکز مربوط د ګورتیپې سیمه

چې د ښار مربوط تر ټولو مهمه او ګڼ میشتې سیمه ده په بشپړه توګه فتحه او د دښمن له واکه وایستله.



په ګورتیپه کې د دښمن ۲۱ پوستې مکملې فتحه شوې، ۴ ټانکونه، یو رینجر موټر او یو سراچه موټر، له سل میله ډیره سپکه او درنه وسله، په زرهاوو مرمۍ او ګڼ نور مهمات له دښمن څخه مجاهدینو په غنیمت ونیول.

په دغو عملیاتو کې د دښمن لسګونه تنه عسکر، پولیس او اربکیان چې مهم قومندانان او د پوستو مرستیالان هم په کې شامل و د جګړې په مهال مړه یا ټپیان شول، او ۵۵ تنه د دښمن اربکیان د مجاهدینو لخوا ژوندي ونیول شول.

**پوښتنه**

جزاک الله خیرا ... د ګورتیپې فتحه رښتیا هم یوه لویه پیښه وه چې هغه مهال رسنیو وویل چې مجاهدین د ولایت څلور کیلومترۍ ته رسیدلي دي، او دښمن یې ډیر وارخطا کړی مګر د دې فتحې په تعقیب په چهاردره او دشت ارچي کې هم مهم تحولات راغلل که د هغه په اړه معلومات راکړئ ؟

**ځواب**

بلې ، د ګورتیپې له سقوط وروسته دښمن ډیر وارخطا شو مجاهدینو له همدې فرصت نه په استفاده د کندز په مهمه ولسوالۍ چهاردره باندې عملیات شروع کړل تردې چې د روان هجري قمري کال د رمضان المبارک میاشتې په دریم ماښام د اسلامي امارت مجاهدین وتوانیدل چې د چهاردرې ولسوالۍ مرکز او شاوخوا ټولې ۱۲ پوستې فتحه او د دشمن عسکر په تیښته مجبور کړي ، چې په دې ډول دغه مهمه ولسوالي هم مکمله د اسلامي امارت د مجاهدینو لاس ته ولویده.

د چهاردې د فتحې په عملیاتو کې د دښمن ۲۴ تنه پولیس او عسکر ووژل شول ۱۹ تنه ټپیان او ۲۵ تنه نور عسکر او پولیس ژوندي اسیران شول.

په دې جګړه کې له دښمن څخه ۴ ټانکونه، ۶ عرادې رینجر موټر، په لسهاوو میله سپکه او درنه وسله، یو عراده غټ نظامي اورال موټر چې له مهماتو ډک وو د مجاهدینو لاسته ورغلل دغه راز په دغه اوږده نښته کې ۲ تنه مجاهدین هم د شهادت لوړ مقام ته ورسیدل او ۴ تنه نور ټپیان شول.

د چهاردرې له فتحې دوه ورځې وروسته د رمضان المبارک په پنځمه شپه د اسلامي امارت مجاهدین د پراخو عملیاتو په لړ کې وتوانیدل چې د کندز په یوه بله پراخه ولسوالۍ دشت ارچي کې د دښمن ۱۴ پوستې او ورپسې د ولسوالۍ مرکز له دښمن څخه ونیسي.

ددشت ارچي د فتحې په عملياتو کې په دې سربېره چې ددښمن ګڼ شمېر عسکر او اربکيان له منځه لاړل مجاهدينو له دښمن څخه ۸ ټانکونه، ۱۲ رينجرموټر ۳ سراچه موټر ،۱۳۰ ميله سپکه او درنه وسله، او لوی مقدار نظامي توکي هم په غنيمت ونيول .بايد ووايو چې د دشت ارچي دفتحې په ټولو عملياتو کې د اسلامي امارت ۲ تنه مجاهدين شهيدان او ۶ ټپيان شول. تقبلهم الله

## پوښتنه

دشت ارچي او چهاردره ولسوالۍ له نظامي ليدلوري د مجاهدينو لپاره څومره مهمې دي او ددښمن لپاره دا څومره لوی شکست بولئ ؟

## ځواب

چهاردره خو ځکه مهمه ده چې دا له يوې خوا دکندز يوه ډېره مهمه او له نفوسو ډکه ولسوالۍ ده،ګڼ کلي لري او له دې ځای څخه مجاهدين د د مختلفو جهادي خدماتو لپاره استفاده کولای شي بله داچې دا سيمه د کندز مرکز ته ډېر نږدې پرته ده ،مجاهدين کولای شي له دغې ولسوالۍ څخه د کندز مرکز ، د کندز هوايي ډګر چې په شمال کې د دښمن يو له مهمو هوايي اډو څخه ده او دغسې نور مهم مراکز تهديد کړي.

مطلب داچې تر څو چې چهاردره او د کندز ښار نورې مفتوحې سيمې د مجاهدينو په لاس کې دښمن نه شي کولای ددې ولايت په مرکز کې د ارام ساه واخلي او ان شاءالله له همدې سيمو څخه په استفاده به مجاهدين وتوانيږي چې د کندز ولايت مرکز هم فتحه کړي .

دغه راز دشت ارچي او امام صاحب چې ډېری سيمې يې فتحه شوې د کندز لويې او پراخې ولسوالۍ دي او ددې سيمو نيول د هيواد د ازادۍ او د شروفساد دمحوه کولو په کار کې لويه لاسته راوړنه بلل کيږي.

## پوښتنه

که وروستيو فتوحاتو ته په پام سره د کندز ولايت نوی تصوير په لاس راکړئ چې هلته د مجاهدينو او دښمن د واک او ځواک موازنه څرنګه ده ؟

## ځواب

د کندز دوه مهمې ولسوالۍ لکه چهاردره او دشت ارچي لکه چې ومو ويل مفتوحه سيمې ده، په نورو ولسواليو کې د امام د ولسوالۍ ۹۰ فيصده خاوره د مجاهدينو په لاس کې ده هلته ددښمن يوازې يو قوي بيس پاته دی چې په سلهاوو پوځيان په کې ميشت دي، که دا بيس له منځه لاړ شي نو د ولسوالۍ مرکز بيا نشي ټينګيدلای .

د خان اباد ولسوالۍ ۷۰ فيصده سيمه د مجاهدينو په واک کې ده په علي اباد کې يوازې په هغه سرک ددښمن پوستې شتون لري چې له کندز د بغلان په خوا تللی او دا ولايت له مرکز کابل سره وصلوی، نور دغه سيمه هم مکمله ازاده ده او مجاهدين کولای شي د بغلان له شهرکهنه څخه تر علي اباد او چهاردرې پورې ازادانه تګ راتګ وکړي،د کندز ولايت په مرکز کې هم له ښار پرته ډېر سيمې د مجاهدين په لاس کې دي او حتی مجاهدين د ښار دروازو ته رسيدلي دي په کندز کې فی الحال په دوو سيمو کې ددښمن يو څه واک شته چې د قلعه زال ولسوالي ځينې سيمې او بل د خان اباد اختاش سيمه چې هلته هم څه اربکيان موجود دي ، نور الحمد لله په کندز کې ددښمن ټغر ورټول شوی دی او په نږدې راتلونکې کې به ان شاءالله موږ د نورو فتوحاتو شاهدان هم واوسو .

## پوښتنه

کومې سیمې چې مجاهدینو نیولي دي آیا دښمن یې د بیرته نیولو کوښښ نه دی کړی ؟ که یې کړی وي څو مره نتیجه یې ورکړې ده ؟

## ځواب

دښمن ډیر کوښښ کړی دی چې دغه سیمې بیرته لاس ته راوړی مګر توانیدلي نه دي اصل کې د مجاهدینو دوروستیو پرمختګونو یو علت هم دا دی چې هلته حکومت د خلکو په منځ کې په بشپړ ډول باور له لاسه ورکړی دی، اوس نه څوک له دولت څخه داریږي او نه ورسره مرسته او ملاتړ کوي، بلکې اولس ټول د مجاهدینو ترڅنګ د حکومت په مقابل کې ولاړ دی، په دغسې وضعیت کې چې ټول اولس په مقابله بوخت وي حکومت نه شي کولای چې کوم پرمختګ وکړي.

د کندز ښار ته څیرمه د تولکې ، شرکت او چهاردرې سیمې چې ډیر اهمیت لري دښمن یې د نیولې لپاره ډیر کوښښ وکړ، په داخلي چاروا کو سربیره حتی هلته د کندز هوایي ډګر ته د جرمني سفیر راغی ،محلي اربکیانو ته په ملیونونو روپۍ ورکړې ترڅو دغه سیمې بیرته ونیسی اربکیانو او نورو عسکرو هم ددې سیمې د نیولو لپاره بیا بیا سخت بریدونه وکړل مګر هرځل له سخت شکست او تلفاتو سره مخامخ شول او هیڅ پرمختګ یې په نصیب نه شو .

## پوښتنه

او وروستۍ پوښتنه دا چې په نیول شوي سیمو کې اوسنی وضعیت څرنګه دی ایا مجاهدینو توانیدلي چې ددې سیمې چارې په سمه توګه سمبال کړي ؟




## ځواب

هو ، لله الحمد په مفتوحه سیمو کې وضعیت ډیر ښه دی، په دې سره بیره ملکی خدمات لکه قضاء ، محاکم او تعلیمي چارې په نورمال شکل روانې دي،مجاهدینو دبیارغونې چارو ته هم توجه کړې ده او د پام وړ عام المنفعه کارونه شوي دي، دغه راز په کندز کې د جهادي تدریب او اعداد کار هم الحمد لله په ډیر ښه شکل روان دی ، هلته مجاهدین منظم معسکرات لري او مجاهدینو ته په بیلا بیلو دورو کې نظامي او تربیوي درسونه ورکوي، دغه راز د صحت په برخه کې هم دپام وړ کار شوی دی او لله الحمد دکندز مجاهدین اوس په خپله سیمه کې له دې اړخه خودکفاء دي ، مجاهدین اړ نه دي چې خپل زخمیان نورو سیمو ته انتقال کړي او هر ډول معالجې او جراحی هماله ترسره کیږي ، د معارف کارونه په ډیر ښه شکل روان دي، عصري مکاتب او لیسې په ښه نظم او ضبط سره فعالیت لري، په دې سربیره ددیني مدارسو کار هم ښه روان دی، مجاهدینو د دیني مدارسو د تقویې لپاره دسږ کال د عشر یوه برخه عائد دیني مدارسو ته ځانګړې کړې دی ترڅو په دې برخه تعلیمي جریان نور هم وده وکړي .

ـ مننه مولوي صاحب له تاسو نه

ـ له تاسو څخه هم مننه موفق اوسئ

# د عزم عملیاتو په لړ کې په روزګان کې

## له دښمنه ۱۳۰پوستې نیول شوي دي

حبیب مجاهد

روزګان ولایت دافغانستان دمرکزي ولایاتو لـه جملې دی چې ختیځ تـه یې غزني او دزابل ولایت یوه برخه ، شمال ته یې دایکندي ولایت لویدیځ ته یې هلمند اوجنوب تـه یـې دکنـدهار او زابـل ولایـاتو مربوطات پراته دي .

د روزګان ولایت مرکـز دتـرین کـوټ ښـارګوټی دی ، ددې ولایـت مساحت ۱۲۶۴۰ مربع کیلومتره ا ونفوس یې شاوخوا څلورلکه تنه دی .

روزګان چې یوه غرنۍ سیمه ده د افغانستان په وروستیو تحولاتو کې همیشه یوه مهمه نقطه پاتې شوي ده، د امریکا په مشرۍ د ګوډاګي رژیم د تاسیس کار لومړی لـه همـدې ځایـه پیـل شـو،حامدکرزی چې وروسته د امریکایانو د کینول شوي رژیم مشر انتخاب شو په پیل کې یې د روزګان له غرنیو سیمو د امریکا په ملاتړ د اسلامي امارت په خلاف فعالیت پیل کړی و.

د جهاد په تیرو څو کلونو کې سره له دې چې په روزګان ولایت کې مجاهدینو شتون درلود خو ددښمن د ډیرې توجه او فعال حضور له امله په دې سیمه کې د مجاهدینو تحرکات کمزوري او د وضعیت ابتکار ددښمن په لاس کې و، په تیره لسیزه کې دښمن توانیدلی و چې د روزګان د مراکزو غونډې په اکثرو اطرافي سیمو ، ناوو او ولس میشتو درو باندې هم کنترول وساتي چې تر ډیره یې دغه سلطه د محلي پولیسو یا اربکیانو د تشکیل په توسط ترلاسه کړې وه .

سږکال د عزم عملیاتو د هیواد د نورو ساحو غونډې په روزګان کې هم د پام وړ لاسته راوړنې درلوې،ددې عملیاتو په نتیجه کې لکه څرنګه چې په بدخشان، کندز، بغلان، فاریاب ، فراه او ګنو نورو سیمو کې دواک او ځواک معادلې سرچپه شوې او مجاهدین د پریکنده بریا او سلطې دریځ ته پورته شول په روزګان کې هم همداسې یو اساسي تغیر راغی او د ولایت ډیرې زیاتې سیمې ددښمن له شتون څخه په یومخیز ډول پاکې او دمجاهدینو واک وربانديې ټینګ شو.

سږکال په روزګان کې په دښمن تر ټولو لومړی او څپونکی ګوزار ددې ولایت د ځواکمن امنیه قومندان مطیع الله خان لـه منځه وړل وو مطیع الله خان چې لـه امریکایانو سره یې مخامخ اړیکي درلودې،د وسلوالو شخصي شبکه یې درلود او لـه تیرو دیارلسو کالونو راهیسې یې په روزګان بې تاجه پاچاهي کړې وه تر دې چې والي او ټول منسوبین به دده په خوښه ټاکل کیدل، سږکال د کال په لومړیو کې مجاهدینو په کابل کې په یوه برید کې په نښه او له منځه یووړ .

د مطیع الله خان وژل کیدلو په روزګان کې ددشمن په مورال خورا بد اغیز وکړ او د دښمن جنګي اراده خو هغه مهال په صفر کې ضرب شوه کله چې څو اونۍ

وروسته ورپسې د مطیع الله خان ځایناستی او د روزګان نوی امنیه قومندان هم مجاهدینو په یوه تاکتیکي برید کې له منځه یوړ.

له دغو اغیزناکو بریدونو سره هم مهال مجاهدینو د روزګان په دهراود ، چهارچینو ، خاص روزګان او نورو سیمو کې په دښمن تهاجمي عملیات هم پیل کړل او ورسره په ځنګ کې یې د دعوت او ارشاد د پروګرام له لارې ددښمن په صف کې ولاړو کسانو ته دعوت ورکړ چې له مقابلې لاس واخلي او خپلې وسلې مجاهدینو ته تسلیم کړي .

ددغسې څو اړخیزو هڅو په پایله کې په یادو ولسوالیو کې مجاهدینو دپاموړ پرمختګونه وکړل، د روزګان ولایت د مطبوعاتي نماینده ښاغلي محمد آصف له قوله د عزم عملیاتو له پیل راهیسې په روزګان کې مجاهدینو ددښمن ۱۳۰ پوستې فتحه کړې او د و لسوالیو تقریبا ټولې اطرافي سیمې یې ددښمن له شتون څخه تصفیه کړې دي.

ددې عملیاتو په لړ کې داسې هم شوي چې مجاهدینو یوه پوسته په جنګ نیولې وي او د نورو پوستو عسکرو د مقاومت توان له لاسه ورکړی او په خپله مخه تښتیدلي وي، ددغسې عملیاتو په لړ کې



یوازې په دهراوود ولسوالۍ کې مجاهدینو ۲۷ نیولې دي چې دسپیني قرارګاه غونډې ددښمن لوی لوی او پاخه مراکز هم په کې شامل دي،د چهارچینو ولسوالۍ چې په حکومتي تشکیل کې په دوو ولسوالیو شهیداحساس او خارخوردي باندې ویشل شوې ده د خارخوردې ولسوالۍ له مرکز پرته په بشپړه توګه داربکیانو له شتون څخه پاکه شوې ده او په نږدې راتلونکې کې به یې ان شاءالله محاصره مرکز هم فتحه شي.

د خاص روزګان ولسوالۍ چې یوه پراخه سیمه ده مجاهدینو دې ولسوالۍ ته په لاره ددښمن ۱۶ پوستې ټولې له منځه وړې دي دغه راز د شالی ناوه او سلطان محمد ناوه په نومونو پراخې سیمه هم تر تسلط لاندې راوستي .

د روزګان په نورو ولسوالیو لکه چنارتو ، چوره او شهیداحساس ولسوالیو کې هم له دښمن څخه ګڼ شمیر پوستې نیول شوي دي، چې په دغو ټولو عملیاتو کې مجاهدینو سلګونه میله سپکې او درنې وسلې ، مهمات او وسایط هم ترلاسه کړي دي.

د روزګان ولایت په پرمختګونو کې لکه څرنګه چې تهاجمي عملیاتو دپام وړ نقش درلود دغه راز د اسلامي امارت ددعوت او ارشاد پروګرام هم ښه نتیجه ورکړې ده ، په تیرو څو میاشتو کې په روزګان کې دتسلیم شویو اربکیانو او عسکرو شمیر تر ۲۰۰ کسانو اوړي چې په دوی کې د خاص روزګان د قومندان شمس الله غونډې مشهور قومندانان هم شته ، ددښمن د عسکرو تسلیمیدو ددښمن په پوځي لیکوکې پراخه وارخطایي ګډه کړې ده چې همدا هم د جهادی فتوحاتو لامل ګرځیدلی .

د روزګان فتوحات او د مرکزی افغانستان په دې نقطه کې جهادي پرمختګونه جهادي صف ته ښه زیرې له ځانه سره درلودلی شي ځکه مجاهدین کولای شي ددې ولایت له مرکزي او ستراتیژیک موقعیت څخه د نورو سیمو د نیولو لپاره استفاده وکړي .

# عبد الله بن حرام

## رضي الله عنه

«برای او گریه کنید یانکنید، به خدا قسم تا زمانی که شما اورا دفن می کردید، فرشتگان با بالهایشان بروی سایه افکنده بودند»

{حدیث شریف}

**نام ونسب:**

عبدالله بن عمرو بن حرام بن ثعلبه بن کعب بن غنم بن کعب بن سلمه می باشد . کنیه اش ابوجابر انصاری سلمی است . صحابی جلیل القدر عبدالله بن جابر فرزندایشان است.

**اسلام آوردن :**

عبدالله بن عمرو پیش هجرت درمدینه مشرف به اسلام گردیده بود ودربیعت عقبه ی دوم همراه هفتاد تن از انصار حضور داشت ویکی ازدوازده سردسته بود .

ایشان در جنگ بدر واحد شرکت داشتند ودر جنگ احد جام شیرین شهادت را نوشیدند و اولین شهیدمسلمانان درآن روز بود . خداوند از آنها راضی باد وآنها را نیز ازخود خشنود گرداند .

**صفات وی :**

سر مبارکش بی مو ، دارای چهرهٔ سرخ رنگ ، قدش زیاد بلند نبود وهمیشه ازخداوند آرزوی شهادت رامی نمود . وچون نبرد احد فرارسید او از خدایش خواست تا اورا نخستین شهید آن روز بگرداند، خداوند متعال نیز دعایش را پذیرفته وبه خواسته اش پاسخ مثبت داد.

از حضرت عبدالله بن جابر روایت شده است که: پدرش قبل از خروج به سوی نبرد احد به او گفته بود: من امید وارم که فردا اولین شهید باشم از اینرو تورا وصیت می کنم که بادختران عبدالله نیکی کنی.

جابر رضی الله عنه می گوید: ایشان شهیدشد ، وماهر دو نفر را در قبر می گذاشتیم، لذا او آن دو را با یکی دیگر در یک قبر دفن نمودیم وتا شش ماه به همین منوال گذشت، تااینکه دلم خواست اورا به تنهائی در یک قبر دفن کنم لذا اورا از قبرش خارج نمودم وزمین از وی چیزی را نه کاسته بود مگر اندکی از نرمی گوشهایش..!!

**شهادت:**

دو لشکر در روز احد در مقابل یکدیگر صف آرایی کردند،عبدالله بن عمرو بسان پهلوانان جنگید، ناگهان سوارکاری ازمشرکین بر او تاخت وچنان ضربه ای بر او وارد ساخت که روح آن بزرگوار به نزد پروردگارش پرواز کرد. در حالیکه از او راضی وخرسند بود.

هرگز چنین نیست..!! در واقع حمله ی سوارکار بر وی ناگهانی نبود بلکه بجا بود؛ چون وقتیکه از خانه بیرون شده بود از پروردگارش خواسته بود تا اورا به شهادت به رساند ودوباره به خانه باز نگرداند.

چقدر ایمانش صادقانه وبی ریا بود...!!

چقدر این اخلاص او بی ریا است...!!

چقدر این نفس سترگ وبزرگ است...!! آن نفسی که آن را به پروردگارش فروخت وجان قربان ومقبولش را به او تقدیم نمود...!!

در پایــان جنــگ مســلمانان درجستجوی شهدای شان بودند، خدا مـی دانـد کـه چقـدر آنهـا وحشـت زده بودند...؟

چقــدر ایــن حادثــه ی هولنــاک وناگهانی برای آنها نگران کننده بود..؟

وچقدر غم واندوه آنها عمیق شد وقتیکه چشم آنهـا بـه شـهدائی افتـاد کـه مشرکین بابـدترین شـکل آنهـارا مثله کرده بودند(یعنی اعضـای آنهـا را بریــده بودنــد) ، آنهــم وحشــیانه کــه عاری از هرگونه عطوفت انسانی بود.

حضـرت جـابر بـن عبـدالله رضـی الله عنه می گویـد: در روز احـد پـدرم درحالیکـه مثلـه شـده بـود در محضـر رسـول خـدا صـلی الله علیــه وسـلم آورده شــد وپــیش رویــش گذاشــته شـد، مـن رفـتم تـاچهره ی اورا نمایـان کـنم کـه مـردم مـن را بـاز داشـتند، صـدای فریـاد وضـجه ی زنـی شـنیده شد که گفته مـی شـد او دخـتر عمـرو است..

رسول خدا صلی الله علیه وسـلم بـه وی گفـت: گریــه نکــن فرشــتگان بابالهایشان برای او سایه افکنده اند.

ونیز از وی روایت شده که گفت: پدرم روز احـد شـهید شـد، بینـی اش بریـــده ودو گوشـــش قطــع گردیـــده بودند، من می خواستم کـه اورابببیـنم کــه مــن را بازداشــتند. ســپس اورا برقبرش آورده وبه همراه شهید دیگر دریـک قـبر گذاشـته شـد. دخـترش شروع به گریـه نمـود، پیامبرخداصلی الله علیه وسلم فرمود: تازمانیکه بلند کــرده شــد، فرشــتگان بــر او ســایه افکنده بودند.

عبدالله بـن جـابر رضـی الله عنـه مـی گویـد: پـس از شـش مـاه بـرای او قبری کندم واورا به آنجا انتقـال دادم ، هیچ چیز اورا ناقص ندیدم بجز چند تار ازریشـش کـه زمـین آنهـارا خـورده بود.

واز طلحه بن خراش روایت شـده که گفت: من از جابربن عبـدالله رضـی الله عنه شنیدم که گفت: رسـول خـدا صلی الله علیـه وسـلم بـا مـن ملاقـات نمود وگفت: ای جابر چرا تورا شکسـته وغمگین می بینم..!!...؟

**گفتم:** ای رسول خدا پدرم شـهید شــده و پــس از خــود عیــالی بجــای گذاشته وقرض دار نیز است.

**گفت:** آیا تـورا بشـارت نـدهم کـه خداوند متعال با پـدرت چـه برخـوردی نمود؟

**گفتم:** چرا ای رسول خدا.

**گفـت:** خداونـد متعـال پـدرت را زنده نموده وبا او روبرو صـحبت نمـود که ( تا بـه حـال) بـا کسـی ( ایـن طـور ) صـحبت نکـرده مگـر از پشـت پـرده، آنگاه به او گفت: ای بنـده ی مـن آرزو کن(واز من بخواه) به تو می دهم.

**گفت:** پرودگارا دوباره من را زنـده کن تا مجددا در راهت کشته شوم.

پروردگــار والا مرتبــه فرمــود: مــن وعــده کــرده ام کــه انســانها پــس از وفاتشان به دنیا باز گردانده نشوند.

**گفت:** بارخدایا پس آنانیکه پشت سرمــن هســتند، آنهــارا(از ایــن مقــام بلند) آگاه ساز. آنگـاه خداونـد متعـال این آیه را نازل نمود:

وَلاَ تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ أَمْوَاتاً بَلْ أَحْيَاء عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ (۱۶۹) فَـرِحِينَ بِمَـا آتَـاهُمُ اللّهُ مِـن فَضْـلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُـواْ بِهِـم مِّـنْ خَلْفِهِـمْ أَلاَّ خَـوْفٌ عَلَـيْهِمْ وَلاَ هُـمْ يَحْزَنُونَ(۱۷۰) يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّـنَ اللّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللّهَ لاَ يُضِيعُ أَجْـرَ الْمُـؤْمِنِينَ (۱۷۱). {آل عمران}.

و کسانی را که در راه خدا کشـته مـی شـوند ، مـرده مشـمار ، بلکـه آنـان زنده اند و بدیشان نزد پروردگارشـان روزی داده مـــی شـــود ( و چگـــونگی زندگی و نوع خوراك ایشان را خدا مـی داند و بس ) .

آنـان شـادمانند از آنچـه خداونـد بـه فضـل و کـرم خـود بدیشـان داده است ، و خوشـحالند بـه خـاطر کسـانی که بعد از آنان مانده انـد ( و هنـوز در راه خدا می رزمنـد و بـه فـوز شـهادت نائل نشده اند و ) بدیشـان نپیوسـته اند . ( شادی و سرور آنان از این بابـت است که پیروزی یا شهادت در انتظار همکیشــان ایشــان اســت و مقامــات برجسته آنان را در آن جهان می بینند ، و میدانند ) این کـه تـرس و هراسـی

بـر ایشـان نیسـت و آنـان انـدوهگین نخواهنـد شـد . ( چـه نـه مکروهـی بـر سر راه آنـان در سرای بـاقی اسـت ، و نه بـر کـاری کـه در سرای فـانی کـرده انـد و دارائـی و عزیزانـی را کـه تـرك گفتــه انــد ، پشــیمانند ) . شــاد و خوشحالند بـه خـاطر نعمتـی کـه خـدا بدانان داده است و فضل و کرمـی کـه او بدیشـــان روا دیـــده اســـت ، و خوشوقت و مسرورند از این کـه ( مـی بینند ) خداوند اجـر و پـاداش مؤمنـان را ضائع نکرده و هدر نمیدهد. (۱)

ونیز از حضرت عبدالله بـن جـابر رضی الله عنه روایت اسـت کـه گفـت: پـدرم هنگامیکـه روز احـد آورده شـد عمه ی من آمده وبر وی گریسـت مـن هم شروع به گریه کـردم ومـردم مـن را از گریه کـردن منـع مـی کردنـد، امـا رسول خدا صلی الله علیـه وسـلم مـن را باز نمـی داشـت ، آنگـاه رسـول خـدا صلی الله علیـه وسـلم فرمـود:(برای او گریــه کنیــد یــا نکنیــد، بخداقســم تازمانیکـه شـما اورا دفـن مـی کردیـد، فرشـتگان بابالهایشـان بـر وی سـایه افکنده بودند).

**مراسم خاکسپاری شهداء:**

پـس از پایـان جنـگ مسـلمانان کشته هایشان را حمل نموده تا آنهـارا در مدینـه خاکسـپاری نماینـد، ناگـه صدای ندا دهنده ی رسول خـدا صـلی الله علیـه وسـلم را شـنیدند کـه مـی گفـت: شـهداء را در موضـع شـهادت شان دفن کنید. وبه ایـن طریـق همـه شهداء را بازگرداندند.

پیامبرخدا (صلی الله علیه وسـلم ) برمراسـم خاکسـپاری یـاران شـهید، مؤمن ودرسـت کـارش ،اشراف داشـت ،آنانیکـه بـا خـدا در پیمانـی کـه بـا او بسته بودند واجر آنان با خدا است.

وچـون خاکسـپاری عبـد الله بـن عمرو فرارسـید ،پیامبرخـدا (صـلی الله علیه وسـلم ) صـدا داد : (عبـدالله بـن عمرو وعمرو بـن جمـوح رادریـک قبـر دفـن کنیـد ، چراکـه آن دو تـا در دنیـا باهم دو دوست (صمیمی )وباصفابوده اند ).

وازحضـرت جابر(رضـی الله عنـه ) روایت شده که هنگامیکـه پیـابر خـدا (صــلی الله علیــه وســلم )بــرای خاکسپاری شهداء احد آمـد، فرمودنـد: کـدام یکـی از اینهـا قـرآن بیشـتر مـی دانست ......؟

چون به مردی اشاره می شد مـی فرمــود : وی را از رفــیقش مقــدم بگذارند.

**گفتنــد** : عبـدالله بـن عمـرو بـن حـرام اولـین شـهید مسـلمانان در معرکهٔ احد است که - شخصـی بـه نـام - ابـو ابـی الاعـور سـفیان بـن شـمس سلمی اورا به شهادت رساند.

آنگاه رسول خدا صـلی الله علیـه وسـلم بـر او نمـاز گـذارد وفرمـود: « عبـدالله بـن عمـرو وعمـرو بـن جمـوح را از جهـــت اینکـــه بـــین آنهـــا صفا(وصمیمیت) بود، در یـک قبـر دفـن کنید».

**ودر روایت دیگر فرمـود:«** ایـن دو شخص را که در دنیا بـاهم بـه عنـوان دو دوست صمیمی بودند، در یک قبر دفن کنید».

**برزگداشت خداوند به شهداء:**

دو شهید بزرگـوار زیـر زمـین در یـک قـبر دفـن گردیدنـد تـا همانگونـه کــه در دنیــا دو بــرادر ودو دوســت بودند در آنجا نیز با هـم باشـند. پـس از گذشت ٤٦ سال از دفـن آنهـا سـیل شــدیدی آمــد کــه زمــین قبرهــا را پوشانید، مسلمانان برای نقـل اجسـاد شـهداء کوشـیدند، همـهٔ شـان را بـه وصفی یافتند که بـه هنگـام شـهادت شان مشارکت داشته بودند.

حضـرت جـابر رضـی الله عنـه از جملــه ی کســانی بــود کــه در هنگــام خاکسپاری آنها حضـور داشـت واو نیـز همراه خانواده اش برای انتقـال جسـد پدر وشوهر عمه اش عمرو بـن جمـوح رفت، آن دو را در قبرشـان یافـت کـه گویا خوابند، زمین از آنهـا هـیچ چیـزی را نکاسته بود.

با توجه ی کامل به گفتار حضرت جابر رضی الله عنه گوش کنـیم کـه او از روز عملیـات نقـل اجسـاد شـهداء سخن به میان مـی آورد : عبـدالله بـن عمـرو مـردی سرخ رنـگ وبـر سر مـو نداشت وبسیار بلند نبـود وعمـرو بـن جمـوح مـردی دراز قامـت بـود، آن دو شناخته شدند ودر یـک قـبر گذاشـته شدند قبر آن دو بر سر راه سیل قرار داشت که سـیل داخـل آن رفتـه بـود،

قبر آن دو کنده شد وبر آن دو تکه پارچه ای بود. زخم عبدالله بن عمرو رضی الله عنه در چهره اش بود ودستش بر سر زخمش قرار داشت، دست اورا از سر زخمش برداشتند که خونهایش جاری گشت، من دوباره دستش را به جایش گذاشتم ، خونش بند آمد .

حضرت جابر (رضی الله عنه ) می گوید : پدرم را درقبرش دیدم گویا خوابیده بود ، هیچ گونه تغییری نه جزی ونه کلی در وی مشاهده نشد.

از او پرسیده شد :آیا کفنش را هم دیدی؟

گفت: او قبلا فقط با یک تکه پارچه ا ی تکفین گردیده بود که فقط با آن چهره اش پوشانیده شده بود و بر سر پاهایش گیاه اسفند انداخته بودیم.با همان تکه پارچه و گیاه اسفند که بر سر پاهایش گذاشته شده بود، بعد از اینکه ٤٦ سال از آن ماجرا می گذشت(بازهم) به همان شکل وهیئت قبلی آنرا یافتیم.

حضرت جابر(رضی الله عنه)به آنها مشوره دادند که قبر ها را با مشک خوشبو کنند.اما اصحاب پیامبر (صلی الله علیه وسلم) نپذ یر فتند وگفتند:نو آوری نکنید.

آن دو دوست از آ نجا به جا یی دیگر منتقل شدند؛ چو ن از کنا ر قبر شان آب قنات می گذشت. قنات از چشمه ای بود که حضر ت معاویه (رضی الله عنه) آ نرا جاری نموده بود.

درادامه روایت می آید که : شهدا در حا لیکه تر و تازه و دو چند شده بو دند از قبر ها یشان خارج گردیدند.

حضرت جابر (رضی الله عنه ) می گوید : هنگا میکه حضرت معا ویه (رضی الله عنه ) چشمه ای را جاری کرده به ما اطلاع رسید که به شهداء احد رسیدگی کنیم. ما آنها را بعد از چهل سال خارج نمودیم در حالیکه اجساد آنها نرم و اعضایشان دو برابر شده بود.

ا ز حضرت جابر (رضی الله عنه ) نیز رو ایت است که : چون پدر او رحلت نمود او مدیون بود،می گوید : من در محضر آن حضرت (صلی الله علیه وسلم )تشریف برده وگفتم :پدرم مدیون است و ما بجز محصولات خرمای او چیزی دیگر در دست نداریم . واگر دو سا ل پی درپی هم محصولات او را در مقابل قر ضها ی او بدهیم باز هم قر ضها ی او آنقدر زیادند که تمام نمی شوند. شما به همراه من بیایید تا بدهکاران به من سخت نگیرند، می گوید:آنگاه به کنا ر خرمنگاهی از خرمنگاهای خرما آمده ودعاء نموده ونشست وگفت : بدهکاران او کجا یند...؟ آنگاه حق آنها را پرداخت نمود وهمان اندازه دیگر با قی ماند.

## د ښیرا په ځای کي دعا !

ویل کیږي وتلی عالم معروف الکرخي رحمه الله یوه ورځ په بغداد کی د دجلې سیند په غاړه ناست و، په یوه وړه کښتۍ کي څو ځوانان ناست وو موسیقی یي غږوله او شراب یی څښل د ده مخته تیر شول، ده ته خپل یوه ملگری وویل: ته په دې اوبو کي دا خلک وینې چي د الله تعالی په سرکښي او گناه لگیادي ښیرا ورته وکړه.

معروف الکرخی رحمه الله لاسونه پورته کړل او ویی ویل: ای الله! لکه څرنگه چی دي دوی په دنیا کی خوشحاله کړي دي زاری درته کوم چی په اخرت کي هې هم داسي خوشاله کړې.

ملگري ورته وویل: موږ درته وویل ښیرا ورته وکړه، ددعا مو نه دي درته ویلي او ته دعا ورته کوي؟!

معروف الکرخی رحمه الله ورته وویل : په اخرت کي چي الله جل جلاله خوشالي ورکوي د دې مطلب دا شو چي په د نیا کي به د توبې توفیق ورکړي، او که دوی توبه وکړي او جنت ته ولاړ شي تاسو ته هیڅ ضرر نه رسوي

رحیمي



# غوره انسان...!

دګډ تیمور له نامه سره نیږدې هر څوک اشنا او ترغوږو یې رسیدلی دی، هغه یو ځل په کوم کوچني هېواد حمله وکړه او دمخالف پاچا فوځیانو ته یې شکست ورکړ، هغه پاچا [باجل] نومیده، کله چې جګړه پای ته ورسیده او دباجل فوځیان دجګړې له ډګره په شا شول، دتیمور لښکر دپریهانه غنیمتونو مندلو سربیره یې باجل دوزیرانواو سلاکارانو سره یوځای ژوندي ونیو، ددې لپاره چې تیمور ته وښودل شي لښکر یې باجل نیولی دی،هغه په رسیو کې ترل شوی،تیمورته په داسې حال کې چې نومړي دخپلو وزیرانو ، سلاکارانو او پوځي چارواکو سره یوځای په تخت ناست و وړاندې کړای شو! تیمور او وزیرانو دهغه په لیدلو وخندل! طبعاً خندا په باجل ښه تاثیر ونکړ! لیکن هغه ترلی و، څه یې نشوای کولی! خو بیا یې هم زړه غټ کړ او تیمورته یې وویل: تیموره! دومره ناپوهه او احمق یې! ایا تا دا له یاده ایستلې چې هرڅوک دنورو پورې خندیږي، یوه ورځ به هغه پخپل شسکت اوښکې تویوي....!

تیمور اوږده ساه واخیسته ، بیا یې هغه ته وویل: ستا په شکست مې ونه خندل؛ اونه دومره احمق یم چې دیو کوچني هېواد په فتحه وویاړم! بلکې خندا راته په دې راغله چې ته !په یوه سترګه ړوند اوزه په یوه پښه ګوډیم ! دخدای حکمت ته ګوره زما اوستا پشان خلکوته یې حکومتونه ورکړي ....

نن هر سړی چې وینې! هغه له خپله ژونده شکایت لرې، ځیني دا شکایت کوي چې کاروبار یې هېڅ سر نه خوري – خرابیږي خو ښه کېږي نه؛ هغه په دې خفه دی چې ولې ور سره دا کېږي ؟ څوک دکار یا وظیفې نه مندلو په وجه کړیږي او شکایت لري چې څنګه نورو کارونه او وظیفې پیدا کړې او دی هغسې بیکاره او بې وظیفې پاته دی؟ بل بیا له فریب ورکونکو سرټکوي او خفه دی چې آخر ولې ډېل شاه او یانورو فرډایانو ورنه په فراډ او دوکه ټولې پیسې ویوړې ؟ لنډه داچې دټولنې هر وګړی چې پوښتې هغه له خپل ژونده خوښ نه او پخپل اوسني حالت راضي ندی! ډېر انسان دنورو انسانانو سره دا موازنه اومقایسه کوي چې له فلاني سره دومره پیسې شته ما سره ولې نشته؟ فلانی په موټر کې ګرځي زه ولې نه ګرځم؟ فلانی ښه ښکلی کور لري ولې یې زه نلرم؟ سربیره په دې چې زه دهغو نه زیات محنتي او زیار کښ یم! ولې ما سره دا څېزونه نشته او دنورو شته ؟ کله دبل له ذهانت سره موازنه کوي ... فلانی ولې دومره ذهنین دی؟ یا هغه .... ولې دومره ښایسته او ښکلی دی؟ هغه... ولې لوی شتمن دی؟ هغه... ولې ډېر عزتمن دی؟ دا خلک ولې دهغه... زیات احترام کوي؟ ولې خلک دهغه خبره مني او زمانه مني؟ هرڅوک دهغه... تعریفونه او صفتونه کوي او زما څوک نوم نه اخلي ؟ دهغه هر کار خلک خوښوی او زما یو کار هم نه خوښوي؟ هغه ...دهر چا په نظر کې ښه دی اوزه دټولو په نظر کې بدیم؟ دا عامه ذهنیتونه دي چې نیږدي ۸۰سلنه وګړي پرې مبتلی دي !

داولې؟ ځکه مونږ په تقدير راضي نه يو! مونږ ديته پام نه کوو چې په دنيا کې هر انسان يومنفرد حيثيت لري هر سړی دخپل تقدير له مخې يومقام او يو مسؤليت لري کوم چې دالله ( ﷻ ) لخوا هغه لپاره ليکل شوی دی، په دې پوهيدل پکار دي چې کوم څه مونږ لرو هم دازمونږ لپاره بس دي؛ دنيا دهر سړي لپاره يوشان ده، شپه ورځ دهر چا لپاره يوه ده: که يو تن دخواهش ليونی نشي نو په دنيا کې هر څه شته...

مونږ ديته نه گورو چې زمونږ سره څه دي چې هغه نشته؟ مونږ يواځې دشتمنو شتمنيو په لور سترگې نيولې حال داچې په دنيا کې دهغو خلکو شمير لږندی کوم چې له مونږ نه هم په ښکته درجه کې او بد ژوند تيروي؛ خو مونږ هغوی نه گورو که نن مونږ هغه ټولې شتمنۍ چې دنورو سره شته ترلاسه کړې بيا به هم خوشال نشو! زمونږ دحرص او لالچ ډگر به ډک نشي، کوم سړی چې په دې روږدی شي چې له نورو سره څه شته ؟هغه به ټول عمر په همدې سوچونو او چرتونو کې غرق ننوتی وي.

مونږ ولې ديته پام نکړو چې بدن مو روغ دی! دواړه سترگې، دوه اړه غوږونه ، دواړه لاسونه او دواړه پښې مو روغي رمټې دې مونږ ساه په اسانۍ سره اخلو! راته پخپل وخت ډوډی رسي، پخپلو پښو گرځو، اوبه خواړه راته پريمانه رسي.

که انسان په دې خوشال نه وي، نو هغه هيڅکله نه خوشا لېږي او هر کله چې مونږ موازنه کوو پوهيږو چې په غلطه خوا روان يو، مونږ دنورو انسانانو پشان د کيدو فکر ولې کوو؟ مونږ خپله پيژندگلوې او مقام ولې پخپله نه جوړو؟ مونږ که به لکونو ځله کوښښ وکړو حقيقت دادی چې مونږ دنورو پشان نشو کېدای.

ارسطو، بقراط زرگونه کاله راندې تيردي خو ترننه بل ارسطو او بقراط پيدا نشول، بل جنيد بغدادي پيدا نشو؛ بله رابعه بصريه پيدانشوه، که دانسانانو څخه پرته حيوانانو، جماداتو، نباتاتو ته ځېر شو په هغوی کې هم يکسانيت نشته هېڅ مرغۍ سل په سلو کې دبلې پشان نده، هيڅ مېښه او غويه دبل پشان ندی هېڅ هندوانه دبلې کاپې نده.

نوبيا يوانسان څنگه دبل انسان پشان کيدوته ليواله دی ؟ ايا په گلبڼ کې ټول گلونه يوشان دي؟ نه! هيڅکله نه! ايا کله نرگس دگلاب پشان کيدو تمنا کړې؟ يا گلاب درامبيل پشان کيدو ارزو کړې؟ نشي کېدای ځکه دفطرت خلاف کار دی او دفطرت خلاف کار تر سره کېدای نشي، هم داسې له ځانه امام ابو حنيفه، شاه ولي الله يا سيد جمال الدين افغاني جوړول ناشونې دي، ځکه هر انسان دخپل هدف لپاره پيدا دی که الله (جل جلاله) غوښتی چې ټول انسانان په يوشان يې پيدا کړې وای دکايناتو خوند به ورک و، ولې په هر لور به يوشان ښېري وي، چې ورته کتل به گران و ، ځکه په بيا بيا يوې ښېرې ته کتل انسان ستړی کوي که يوازې گلاب وای نور گلان نه وای نو د گلاب چې اوس کوم قدر دی دابه نه و، که يو اځې نرگس وای نو دصفت اوسنې چرچا به يې نه وه چابه ورته کتل هم نه.

هر انسان منفرد دی اوپه دې انفراديت کې دهغه دپيژند گلوۍ وياړدی !خومونږ بيا هم نه پوهيږو چې ټول عمر ديوشان کيدو کوښښونه کوو خو ځومره محنت چې دبل په نقالۍ کې تيروو که دا دخپل حيثيت اوشخصيت په جوړولو کې تير کړو! نو خامخا به دکردار او اخلاقو له پلوه له مونږ نه نور ښايسته انسانان ونه مندل شي... پای

ليکوال : جېکب هارن برگر
ژباړه : نثاراحمد

# امريکايي پوځيان د امپراتورۍ

## او تسلط له پاره وژل سوي دي

د « پوځيانو د يادونی » په ورځ امريکايانو هغه پوځيان وستايل چې زموږ د هيواد د دفاع له پاره وژل سوي دي . خو په دې هکله يوه غټه ستونزه موجوده ده : هغه دا چې دغه پوځيان د هيواد د دفاع له پاره نه دي وژل سوي ، بلکی برعکس د امپراتورۍ او تسلط له پاره وژل سوي دي.

امريکايي لوړ رتبه مامورين او د وژل سوو پوځيانو د کورنيو ډير غړي د ښکاره دلايلو سره سره همدې اعتراف ته نه حاضريږي ، بلکی په بې فکرۍ سره هماغه بابولاله تکراروي چې « هغوی د هيواد د دفاع له پاره وژل سوی دي« .

راځئ چې په ۱۸۹۸ کی د هسپانيې او امريکې جنګ مدنظر ونيسو . آيا هسپانيې کله هم پر امريکا بريد او تيری کړی و ؟ قطعأ نه . بلکی امريکايي حکومت د خپلواکۍ په هغه جنګ کی مداخله وکړه چې د هسپانوي امپراتورۍ او د کيوبا او فلپين په شمول د هغه د مستعمرو تر منځ جاري و . ځکه نو هغوی په هماغه جنګ کی واضحأ زموږ د هيواد د دفاع له پاره نه دي وژل سوي . دا په تيره بيا د هغو امريکايي پوځيانو په هکله ښه صدق کوی چې په فلپين کی په هغه جګړه کی ووژل سول چې د هسپانوي واک پر ځای د امريکايي واک له پاره وه.

لومړۍ نړيواله جګړه : په هغه جګړه کی هيڅ هيواد قطعأ پر امريکا يرغل نه و کړی . امريکايي پوځيان ځکه ووژل سول چې د ديموکراسۍ له پاره نړۍ وژغوری او باالاخره پخپله جنګ هم پای ته ورسوي . خو د دوهمې نړيوالی جګړې پيښېدو دا ثابته کړه چې په لومړۍ نړيواله جګړه کی وژل سوي پوځيان ناحقه او د هيڅ له پاره مړه سوي وو.

دوهمه نړيواله جګړه : هو ، زه خبر يم چې هغه يې « ښه جګړه » بلله ، دا ځکه چې جاپاني ځواکونو په « پيرل هاربر » کی يوه غلچکي حمله وکړه . خو حقيقت دا دی چې ولسمشر فرانکلين روزويلټ وغوښته چې جاپان پر امريکا حمله وکړی . آيا موږ بايد پر دې سترګی پټی کړو ؟ دا خو هماغه د ولسمشر روزويلټ له خوا پر جاپان باندی د تيلو بنديز و تر څو په دې ډول جاپان ولمسوي چې د امريکا د آرام سمندر پر بيړيو حمله وکړی او په دې ډول د روزويلټ له خوا د تيلو د بنديز څخه آزادي حاصله کړی او هغه تيل تر لاسه کړی چې د چين سره يې د خپل جنګ له پاره سخته اړتيا ورته لرله . روزويلټ پوهېدئ چې که جاپان د « خپل لومړني ډز له پاره » کنښېکاږی ، نو دئ به ووايی چې « موږ خو بې ګناه وو ! پر موږ حمله وسوه ! » پس دا په اروپا کی د نازي جرمنی پر ضد د جنګ له پاره د يوې « عقبي دروازې » په توګه وګڼل سوه چې د امريکا خلک هغې ته د وردانګلو باالکل مخالف وو.

بايد دا هيره نکړو چې جاپان قطعأ د امريکا پر خاوره بريد نه دی کړی . هاوايی هغه مهال د امريکا کوم ايالت نه و . بلکی هغه د امريکا د حکومت يوه مستعمره وه . آيا تاسو حقيقتأ تعجب نه کوئ چې امريکايي پوځيان ولی په فلپين يعنی هغه ځای کی مستقر وو چې هلته يې د جاپانيانو له پاره د يوې اضافي طمعې ( د دام دانې ) رول لوباوه چې بيا د جاپاني ځواکونو له خوا پر پيرل هاربر د حملې په نتيجه کی ووژل سول يا ونيول سول ؟ دا ځکه چې امريکا د هسپانيې او امريکې تر منځ د جنګ د يوې برخی په توګه فلپين د خپلی مستعمرې په حيث نيولی و.

اصلی حقيقت خو دا دی چې جاپان پر امريکا د حملې له پاره نه نظامي وسايل لرل او نه يې هم د هغه د نيولو سره دلچسپي لرله . بلکی په پيرل هاربر کی پر

امریکـایی بیړیـو د جاپـان د بریـد اصـلی هدف دا و چی ځان د تیلو له هغـه بنـدیزه خلاص کړی چی روزویلټ وربانـدی تر پلـی و.

دغه اصلی دلیل هـم بایـد هیـر نکـړو چـی انگلسـتان او فرانسـې خـو پـه دوهمـه نړیواله جگړه کی د جرمنی پـر ضـد جنـگ اعلان کړ تر څو پولینډ د نـازي مطلـق واک څخه آزاد کړی . نو د دې جگړې پای څنگ سـو ؟ هماغـه پولینـډ د شـوروي اتحـاد تـر مطلق واک لاندی راغی چی نور ۴۵ کالـه د هغوی په منگلو کـی پاتـه سـو . نـو مـا تـه داسـی معلومیږی چی پر پولینـډ او ختیځـه اروپـا بانـدی د نـازي کنټـرول پـر ځـای د کمونیستي کنټرول لـه پـاره وژل کېـدل یـو بدنامه او مفتضح عمل و.

د دې « ښه جگړې » مـدافعین وایـی چی که څه هم هټلر پر امریکا قطعاً برید او تیرئ نه دی کړی مگر دا کـار یـې گـواکی وروسته کاوه . آیـا دا رښـتیا ده ؟ زه دومـره پوهیږم چـی د هغـه پـوځي ځواکونـه آن پـه دې هم قادر نه وو چـی تـر برتـانوي سیمو ورتیر سی او انگلستان فتح کړی . آیا په یـو غټ پوځی قوت سره د اتلانتیک تر سمندر ورتیرېـدل او بیـا پـه بریـالیتوب سره پـر امریکا حمله کـول او د هغـه نیـول او فـتح کول یو خورا مشکل او خطرناک عمل نه و ؟

نو کـه امریکـا ځـان د شـوروي اتحـاد څخـه ژغـورلای سـو چـی د نـازي جرمنـی غوندی یو لوی شیطان و ، نو بیا یې څنگه د نازي جرمنی یا په نـړۍ کـی د کـومی بلـی ورته دیکتاتورۍ څخه ځان نسو ساتلای ؟

آیـا خـبره د اروپـایی یهودیـانو وه ؟ هغوی خو ټوله د هماغه « ښه جگـړې » پـه پای کی له منځه ولاړل . له دې نـه عـلاوه ، د امریکا حکومت خـو قطعـاً د هغـوی بـده ورځ نه د جگړې پـه جریـان کـی او نـه تـر هغې مخکی په باک رانه وړه . ځکه نو مـوږ په هیڅ حق او مشروعیت سره نسـو ویـلای چی امریکایی پوځیان د هولوکاست ( یهـود وژني ) څخه د اروپـایی یهودیـانو او نـورو د خلاصون له پاره ووژل سول.

دوهمـی نړیـوالی جگـړې پـر ختیځـه اروپا او شرقي جرمني بانـدی تر کمونیسټی کنټرول ډیر نور څه هم راکـړل . هغـې مـوږ ته د یو تلپاته ملـی امنیـت جوړښـتون هـم راکړ او هم یـې د هماغـه دوهمـی نړیـوالی جگړې د انـډیوال یعنـی شـوروی اتحـاد پـر ضد « سړه جگـړه » هـم را پـه نصـیب کـړه (هـو ، صـحیح مـو ولوسـتل چـی د امریکـا حکومـت پـه دوهمـه نړیوالـه جگـړه کـی د شـوروي کمونیسـټانو سره ملگرتـوب وکـړ ، یعنی هماغه شوروي کمونیسټان چـی آن د هماغه جگړې تر ختمېدو مخکی لا په سړه جگړه کی د امریکایی حکومت د یو رسمـی دښمن په توگه واوښتل. )

هغه خبره د کوریا جگړې او د ویتنام جگړې ته پسی ورسوله چی له هغوی نه یوه لا هم نه پر امریکا حمله کړې وه نه تیـرئ . مـوږ همـدا راز د وژلـو پروگرامونـه ترتیـب کـړل ، انسـاني وجـود تـه بیلابیـل کړاوونـه ورکول ، د « ایف بي آی » او «سي آی اې» له خوا د جنگ ضـد ناراضـیانو تعقیـب ، د کمونیسټانو پر ضد عملیـات ، پـټ یرغلیـز عملیـات ، پـه ایـران ، گـواتیمالا ، ایـران ، کیوبـا ، انـدونیزیا ، چیلـی او نـورو هیـوادو

کـی د امریکـا پـه لمسـون کودتاگـانی او د رژیم بدلولو نور عملیات ، بهرنـۍ مرسـته ، یو همیشنی پوځی ـ استخباراتی جوړښتون، د جنگ جوړونی یو دایمی ماحول ، بحـران، بیـــرني عملیـــات ، او پـــه پرلـــه پســـې زیاتېدونکو پوځی او استخباراتی برخو کـی د مالیه ورکونکو د پیسو مصرفول.

د سـړې جگـړې مړینـی خـبره « د تروریزم پر ضد جگړې » ته ورسوله چی لـه امله یې د ملی امنیـت جوړښـتون نـور هـم مضـبوط سـو چـی هغـه پـه خپـل وار پـر افغانسـتان او عـراق یرغلونـه وکـړل چـی هغوی یوه لا هم نه پر امریکا برید کـړی و ، نه تیرئ . موږ یو ځـل بیـا د وژلـو ، کړولـو ، راتسـلیمولو ، د بـې رحمـه دیکتـاتوري رژیمونـو سره ملگرتـوب ، د امریکایـانو او نړیوالـو د پـټ تعقیـب طرحـي ، د قـانوني بهیرونو څخه مخ اړول ، تر نامعلومه وختـه بندي کـول ، د بیړني حالـت ، بحرانونـو او بیری یو دایمی چاپیریال ، او د یـوې تلپاتـه ملـی امنیـت اداري لـه پـاره زیاتېـدونکې بودجـه چـی هغـه یـې پـه اصـلی حکـومتی جوړښت پوری چی اساسی قـانون رامنځتـه کړی و ، پیوند کړه.

نو آیـا هغـوی زمـوږ د هیـواد لـه پـاره وژل سوي دي؟

یا، قطعاً نه.

بلکی هغه مړه سوي پوځیان چـی نـن یـې مـوږ سـتاینه او عـزت کـوو ، یـوازی د امپراتورۍ او تسلط له پاره وژل سوي دي .

پای.

# عجيب

## اوبې لومړيتوبه متفکر

خوشحال آصفي

متفکر،

رهبر، او ذعيم هغه چا ته ويل کيږي چې لوي فکر ولري، لوی ليد ولري، لوي لوي کارونه وکړي، اوږدمهالي موخې ولري، لوي پلان ولري، لويه حوصله او صبر ولري، يوه اداره او سازمان خپلو لويو او لوړو موخو ته ورسوي،

لوي او پياوړی ټيم ولري، په خپل ټيم او ډلې باندې اعتماد او باور ولري، کارونه او مسوليتونه په خپلې ډلې او کاري ټيم باندې وويشي او دايې يوازې مشوره او لارښودنه کوي او يا هم په لويه کچه پاليسي او ستراتيژي جوړوي او بلاخره د يو متفکر يا رهبر هره کړنه او ځرګندونه محاسبه شوې وي، پلان شوې وي، دقيق او پر ځای وي، او ډير په احتياط او فکر سره ګام پورته کوي.

دا د زمونږ د هيواد دويم متفکر ډاکټر محمد اشرف غني په تيرو نهو مياشتو کې داسې کړنې او ځرګندونې وکړې چې حتا يو عادي مدير يې په يوه عادي اداره کې هم نه کوي او تر اوسه هغه کارونه يې چې دې ترسره کړي اصلا په هغه کې دلومړيتوب اصل شتون نه لري، په هغه کې اصلا يو لوي فکر او ليد شتون نلري او د يو متفکر او هغه هم د نړۍ په کچه متفکر اعتبار او اعتماد تر پوښتنې لاندې راولي. د بيلګې په توګه:

لومړی: غني د افغانستان د ټولو اداراتو واک او مسوليت په خپله ولکه کې اخيستی دی، وزير دی ټاکي، مرستيال دی ټاکي، ريس دی ټاکي، مدير دی ټاکي او بلاخره مامور هم دی ټاکي او له هر چا نه بيله بيله پوښتنه هم کوي. ايا يو متفکر او رهبر به دا کار وکړي چې په هر کار کې لاسوهنه وکړي او هر کار په خپله وکړي؟ نو بيا په اصطلاح دا کابينه د څه لپاره ده؟ دا شپږ ويشت وزارتونه او په لسهاوو نورې خپلواکې ادارې د څه لپاره دي؟ آيا دغه د ملي يووالي تش په نوم سمبولونه دي او که بل څه؟

دويم: غني راځي د کابل ښار د سړکونو د پاکوالي لپاره خپل لستوني بدوهي او ظاهراً غواړي د ښار په پاکوالي کې ونډه واخلي، حال دا چې د څو ساعتونو لپاره سړکونه بند شول، د کابل ښاريان د لسګونو ستونزو سره مخامخ شول او د غني کار هم د څو چاپلوسانو سره د څو انځورونو اخيستل و او بس. آيا يو متفکر او رهبر به دا کار وکړي؟ نو بيا والي د څه لپاره؟ ښاروالي د څه لپاره او نور ادارات د څه لپاره؟

متفکر صيب ! ستا دنده دا ده چې لومړی د کابل والي وټاکې، وروسته د کابل ښاروال ښاريانو ته وپيژنې او په ټوله کې د مسولينو پام ورته راواړوې؛ نه دا چې ته په خپله د ښاروالی کار مخته يوسې او هغه هم په نمايشي بڼه.

دريم: ښاغلی غني راځي د افغانستان د حقوقو پوهنځي د نويو فارغ شويو محصلانو د لوړې په مراسمو کې ګډون کوي او هغوي ته قسم ورکوي. آيا يو متفکر او رهبر به دا کار وکړي؟ نو بيا قضايه قوه د څه لپاره؟ سرپرست قاضي القضات د څه لپاره؟ آيا دا کار او دنده ستا ده او که د هغوي؟ په دومره ټيټه کچه تاسې هر چا ته قسم ورکوی؟ نو دا نور ادارات څه کوي او تنخوا د څه لپاره اخلي؟

متفکر ستاسې دنده دا ده چې لومړی قاضي القضات وټاکی، بيا د سترې محکمې نور غړي ملت ته ورو‌پيژنی، څو خپل کار پيل کړي؛ نه څو تنو نويو فارغانو ته قسم ورکول.

څلورم: غني راځي د وزير، مرستيال، ريس او حتا له عادي مدير نه ازموينه اخلي؛ ولوکه دغه کسان په هره برخه کې

تخصص ولري باید غني ته ازموینه ورکړي، نو بیا د اداري اصلاحاتو اداره د څه لپاره ده؟

پنځم: غني راځي په خپله د اداري فساد سره مبارزه کوي او حکم ورکوي چې په فلانی اداره او یا فلاني وزارت کې دې دا کسان ونیول شي او څېړنې دې ترې پیل شي او یا فلانی خان په فلانی اداره کې دې وګمارل شي او فلانی خان دې له دندې ګوښه شي. آیا یو متفکر او رهبر به دا کار وکړي؟ نو بیا لویه څارنوالي د څه لپاره ده؟ د اداري فساد سره د مبارزې اداره د څه لپاره ده؟ او په لسګونو نور ادارات چې په یاده برخه کې کار کوي؛ هغوي څه کوي او ددوي دنده او مسولیت څه دی؟

دا هغه پنځه واړه موارد و چې د بیلګې په توګه ترې یادونه وشوه. دا کړنې دا ثابتوي چې ښاغلی محمد اشرف غني یو بې لومړیتوبه متفکر دی، هغه کار چې دی یې باید وکړي؛ هغه نه کوي او هغه کارونه چې نور کسان یې د قانون له مخې باید وکړي؛ هغه دی کوي. لوي لوي کارونه نه کوي بلکه ډېر واړه واړه کارونه کوي چې هغه دده دنده هم نه ده. لوي فکر نه لري بلکه د یوې وړې اداري په کچه فکر لري او بالاخره په هر کار کې لاسوهنه کې چې اصلاً یو متفکر او رهبر ته اړتیا نشته چې دغه کارونه ترسره کړي.

# په دې پوښتنې فکر وکړه!

لیکنه: استاذ علي طنطاوي

مړي ته دې سودا مه کوه...
وراسته جسد ته دې چورت مه وهه او اندېښنه مه ور ته کوه،
مسلمانان ډېر دي، هغوی به یې پر ځای کړي..
کالي به دې در نه وباسي..
و به دې لمبوي...
کفن به در کړي...
له کوره به دې وباسي او ګور ته به دې یوسي!!
ډېر خلک به دې جنازې ته راشي او ستا د ښخولو له پاره به ډېر خپل کارونه پرېږدي.
په دوی کې به ډېر داسې وي چې یوه ورځ به یې هم تا ته د نصحیت کولو فکر هومره نه وي کړی...
د شخصي استعمال لوازم لکه کیلي ګانې، کتابونه، بټوه، بوټان، او کالي به دې یا وغورځول شي او یا دې که کورنی. وتوانیږي خیرات به یې کړي چې ګټه یې تا ته در ورسیږي..
مګر، نه به دا دُنیا در باندې خفه شي او نه دا دُنیاوال!
اقتصاد به همداسې روان وي،
وظیفې ته به دې پر ځای بل څوک راشي...
شتمني به دې د ورثه وو تر مینځ ووېشل شي، او د ذرې، ذرې حساب به یې له تا سره وشي!!!
غم به دې درې ډوله وي:
۱ -هغه خلک دې چې سرسري پیژني، (یوازې دومره به) به وایي چې بېچاره....
۲ -ملګري به دې یو څو ساعته یا یو څو ورځې در باندې خفه وي او نور به بېرته خپلو خنداګانو ته مخه کړي!!
۳ -هغه تر ټولو ژور غم به دې په کور کې وي!! کورنی به دې در باندې یوه اوونۍ، دوه اوونۍ، یا یو دوه میاشتې او یا یو کال غمجنه وي، او له هغې وروسته به دې د یادونو په ارشیف کې کښېږدي!!
په دې توګه به دې دلته کیسه ختمه شي، او د آخرت کیسه به دې پیل شي!!
کله دې چې دبدبه، مال، روغتیا او بچیان در نه پاتې شول؛ چې له خپل کور، او خپلې مانۍ او کورنی څخه بېل شوې، او اصلي ژوند دې شروع کړ؛ دا پوښتنه به را پورته شي چې د خپل ګور او آخرت له پاره دې څه توښه راوړې؟
نو په دې پوښتنې همدا اوس فکر وکړه، او:
فرائضو، نوافلو، پټې صدقې، پټو نېکو اعمالو، او تهجد ته پام کوه،
کېدی شي چې خلاصون دې په برخه شي!!!!

# د حضرت لقمان حکیم

# پنځوس نصیحتونه

ډیر مهم
او ضرور نصیحتونه هیله
لرم چې لوستل یې ضرور کړي.

۱ــ د ګټې او زیان له پاره خپل عزت له منځه مه وړه.

۲ــ ملګري ته د راز خبره مه کوه کېدای شي ، چې سبا ستا دښمن شي.

۳ــ د خلکو هومره لحاظ کوه ، چې ځان خراب نه کړې .

٤ــ له جنګ او فتنې څخه په ډډه ګرځه.

٥ــ په مجلس کې له خلکو څخه مخکې مه ویده کېږئ.

٦ــ مړي بد مه یادوئ ، ځکه چې ګټه نه لري.

۷ــ د مېلمه په وړاندې چاته غوسه مه کوه.

۸ــ خلک د خلکو په وړاندې مه رسوا کوه.

۹ــ بې ځایه وینا کوونکی او لویي کوونکی مه اوسه

۱۰ــ که د ژبې له زیان څخه ځان ژغورل غواړئ ، نو چپ اوسئ

۱۱ــ چوپتیا او خاموشي خپله پانګه وګرځوئ

۱۲ــ له بد ذاته خلکو څخه د وفا تمه مه کوئ

۱۳ــ چوپتیا خپل شعار جوړ کړه ، چې د ژبې له شر نه خوندي شې.

١٤ــ که تاسو له چاسره محبت نه شئ کولی نو له هغه څخه نفرت هم مه کوئ.

۱٥ــ ما ادب له بې ادبانو څخه زده کړ ، ځکه چې دوی به کوم ناوړه کار وکړ ، مابه له هغه څخه ځان ژغوره .

۱٦ــ په مجلس کې خپله ژبه په کنټرول کې وساتئ.

۱۷ــ په کوم حالت کې چې اوسې پر هغه خوښ اوسه.

۱۸ــ په هر چا مه بد ګومانه کېږئ کنه نو په دنیا کې به هېڅ دوست او خوا خوږی ونه مومئ

۱۹ــ په لمانځه کې د زړه ، په مجلس کې د ژبې ، په غوسه کې د لاس او په دسترخوان د ګېډې ساتنه کوئ.

۲۰ــ د خلکو د هوساینې له پاره کوښښ وکړئ له خلکو څخه مه ډارېږئ او په خپل منځ کې په مینه سره ژوند وکړئ.

۲۱ــ هغه راز چې له دښمن څخه یې پټ ساتئ ، دوست ته یې هم مه ښکاره کوئ ځکه کېدای شي ، چې دا دوست مو یو وخت دښمن شي.

۲۲ــ هر وخت خپل مرګ په یاد ولرئ.

۲۳ــ ځوانمردي د ځان عادت وګرځوئ.

۲٤ــ که چېرې خلک تا په هغه صفت موصوف کړي ، چې ته یې وړ نه یې مه مغروره کېږه ، ځکه د ناپوهانو په وینا هېڅ کله هم له تېږي څخه زر نه جوړېږي.

۲٥ــ دنیا د غلو مورچه ده په دې کې په هوښیارۍ او پوهې سره ژوند کول په کار دی.

۲٦ــ مرګ داسې شی دی ، چې معلوم نه دی ، چې کله به راځي له وړاندې ورته تیاری نیول په کار دی .

۲۷ــ له ستونزو څخه مه وېرېږه ، ځکه چې ستوري په تیاره کې ځلېږي.

۲۸ــ د لمر ختلو پرمهال مه ویده کېږئ ځکه چې د عبادت پرمهال ویده کېدل بدبختي ده.

۲۹ــ د غوسې په حالت کې د خپل لاس ساتنه کوئ.

۳۰ــ که عزت غواړې تمه غوڅه کړه ، له هغه څه چې د خلکو په لاس کې دي او په هغه څه چې خدای (ج) درکړي راضي اوسه.

۳۱ـــ په کوم نعمت کې چې شکر وي د هغه پای نـه شته او په کوم نعمت کې چې ناشکري د هغه پایښت نه شته.

۳۲ـــ الله (ج) او مرگ هېڅکله لـه یـاده مـه باسـئ ، خپلـه شېگړه د بل بد گړه هېره کړئ.

۳۳ـــ ډېر اورئ او لږ غږېږئ.

۳٤ـــ په خپته وږي ، خو په حکمت ماړه اوسئ.

۳٥ـــ په خپله هم نېکي کوئ او نورو ته هم د نېکي تلقين کوئ.

۳٦ـــ په هر مجلس کې چې د الله (ج) ذکـر کېـږي گـډون په کې کوئ او بدانو له ناستې نه ځان لرې وساتئ.

۳۷ـــ رښتیا خبره مه پټوئ او دروغ خبره له سره مه کوئ

۳۸ـــ له پوهـانو سره ناسته ولاړه غـوره کـړئ ، دا کـار پـه ربړو او ستونزو کې له تاسې سره مرسته کولای شي.

۳۹ـــ له احمقانو او ناپوهانو سره انډیوالي مه کوئ ، دا پـه ستونزمن وخت کې ستاسو ربړې او کړاوونه لا زیاتوي.

٤۰ـــ لکـه بـاران چـې وچـې ځمکـې لمـدوي ، دغـه راز لـه عالمانو سره ناسته ولاړه د سړي زړه تاند او رڼوي.

٤۱ـــ بې روزگاري اړتیا را منځته کوي او اړتیا په دینـدارۍ کې خلل اچوي ، فکر ته زیان رسوي او مروت ( مېړانه ) له منځـه وړي.

٤۲ـــ که چېرې مو کوم کـار بـل چاتـه سپاره ، نـو پوه سړي ته یې وسپارئ که پوه په گوتو نـه درتلـو نـو پـه خپله یې کوئ که نه نو هېڅ یې مه کوئ .

٤۳ـــ په علـم سره زړه داسـې ژونـدی کېـږي لکـه وچه ځمکه په باران .

٤٤ـــ د عقـل پـه څېـر هـېڅ دولـت نـه شته او د جهالت په څېر هېڅ غربت.

٤٥ـــ د دنیا ربړې او کړاوونه آسان وگڼئ او مـرگ هېڅکله مه هېروئ .

٤٦ـــ د علم په مرسته د انسان وحشت او ډار لـه منځه ځي.

٤۷ـــ د دنیا په کارونو کـې دومره بوخـت اوسـه ، څومره چې دې عمر پاتې وي ، هېڅوک نه پـوهېږي چـې زمـا عمـر بـه څـومره پـاتې وي ، کېـدای شي یـوه گـړۍ وروسته یې مرگ مېلمه شي، ځکه نو د چا چې دا تصور وي هغـه به ولې په دنیا کې ځان بوختوي .

٤۸ـــ د الله (ج) عبادت د هغو اړتیاوو په اندازه وکړه ، چې خدای (ج) پورې تړلې دی . ( ژوند ، مړینـه بیـا ژونـدي کېـدل ، وروستی حساب ، جنت ته تلل او همېشـنی ژونـد ټـولې اړتیـاوې یـوازې پـه الله (ج) پـورې تړلـې دي ځکـه نـو مطلـب دا دی چـې انسان دې همېشه د الله (ج) په عبادت بوخـت وي ، البتـه د الله (ج) له خوښۍ سره سم د دنیاوي اړتیاوو د له منځه وړلو لـه پـاره کار کول هم په عبادت کې داخل دی.

٤۹ـــ د هغه مقام په اندازه عمل وکړه ، چې په قیامت کې یې د ځان له پاره غواړې ، هر څو ک غواړې چې په آخرت کې یې تر ټولو لوړ مقام وي ، نو ځکه د لوړ مقام تـر لاسـه کولـو لـه پـاره پرله پسې هڅو او زیات زحمت ته اړتیا ده.

٥۰ـــ پر گناهونو باندې جرأت بایـد پـر هغـه صبر استوار وي ، چې تاسو یې د الله (ج) په عذاب وکړای شـئ، د الله (ج) پـه عذاب خو یوه شېبه هم صبر کول ممکن نـه دي ، نـو ځکـه د لـږ وخت له پاره هم د ډېرې لږ گناه جرأت نه شي کېدای.

# ای زبان

**ای زبـــان! هـــم آتـــش و هـــم خرمنـــی**
**چنـــد ایـــن آتـــش در ایـــن خـــرمن زنـــی**

**در نهـــان جـــان از توافغـــان مـــی کنـــد**
**گـــر چـــه هـــر چـــه گـــویی اش، آن مـــی کنـــد**

**ای زبـــان! هـــم گـــنج بـــی پایـــان تـــویی**
**ای زبـــان! هـــم رنـــج بـــی درمـــان تـــویی**

**هـــم صـــفیر و خدعـــه ی مرغـــان تـــویی**
**هـــم انـــیس وحشـــت هجـــران تـــویی**

# وصال د مدينې

مبارک دې شه وصال د مدينې
په څرخ ولگيد شمال د مدينې

د محبوب په يمني څادر کې پټه
کړه راخور اويسي شال د مدينې

په نغمو د(بهايی) باندې را لويه
څرخ دې تل غږ وي تال د مدينې

اوس هم شور د مولانا د الاهو دی
لرې قطب او ابدال د مدينې

اينه ملکوت يې په ځلا کړه
ستا په زړه راغلی حال د مدينې

په احد او کربلايي له رب غواړم
د جمال سره جلال د مدينې

لږ را ټيټ شه،چې دې لاس په اوږه کيدي
څه ناگار څه يې پروبال د مدينې

ناګار

# Srak



## پرون او نن د مشرانو توپير !...

الحاج ملا محمد رباني د ملا محمد عمر اخند مرستيال او د حکومت مشر وو. په دې حساب هغه له مشر ملا صېب را وروسته يو مقتدرترينه کس وو، خو داختياري فقر يې دا حال وو چې د ژوند تر پايه د شرعي نصاب څښتن نه شو.

د ژوند په وروستيو کې د درملنې لپاره اماراتو ته لاړ، هلته دولت او شتمنو شيخانو ور سره د زړه له إخلاصه مرسته وکړه او د راوي په وينا د ده د شخصي لګښتونو لپاره يې څو سوه زره ډالر ورکړل. خو حاجي معاون صېب چې کله کندهار تـه ستون شو نو يې ټولې پيسې د بيت المال په نيت مشر ملا صاحب ته وسپارلې. مشر ورته کړل چې يو څه پيسې به دې در اخيستي وې، خو ملا محمد "رباني" په خورا متانت ورغبرګه کړه چې ټول ژوند د شرعي نصاب څښتن نشوم، اوس چې دګور تر غاړې ورسيدلم، نه غواړم چې ځان د شتمنۍ په ځنځير وتړم او مخکې راته حساب کتاب پيچلی کړم !...

دغه دروند او متين انسان همداسې په بيوزلۍ کې ومړ... انا لله و انا اليه راجعون.